


دیني، اروېجنه (اولسي - ملي)، هڅوبیزه (فرهنګي)، واکګیزه (سیاسي)،
ټولنیزه (اجتماعي)، ژوندودیزه (کلتوري)، ښیټلیکیزه (تاریخي) او ادبي زېرمپانه (مجله)



پرلپسې ګڼه: (دوهمه) (ذوالحجة الحرام-
۱٤۱۹ محرم الحرام ۱٤۲۰) یا د ۱۳۷۸ کال د
وری او غویی میاشت

# ددې ګڼې په پاڼو کښې



## کندهار

پته: د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست د مجلې دفتر.
ټیلیفون: ۷۳۷۷۰۷_ فاکس ۸۳۷۷۰۷ کودنمبر ۰۸۱
پوست بکس نمبر(۱) چمن پاکستان..........

د اهتمام او امتیاز خاوند د اطلاعاتو او کلتور ریاست

### د کلنۍ ګډون بیه

په هیواد کې دننه: ۳۰۰۰۰ افغانی
په ګاونډیو هیوادونو کې: ۱۰۰ پاکستانی کلدارې
په لیرې هیوادونو کې: ۱۰ امریکایې ډالره
زده کونکو ته د تصدیق په لرلو سره په نیمه بیه باندې ورکول کیږي

کمپوز او ډیزاین د الامارت کمپیوتر اداره
د کمپیوتر سمبالوونکی:
**احمد جمیل صالحی**



يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّكُمْ وَاخْشَوْا يَوْمًا لَّا يَجْزِيْ وَالِدٌ عَنْ وَلَدِهٖ ۡ وَلَا مَوْلُوْدٌ هُوَ جَازٍ عَنْ وَّالِدِهٖ شَيْـًٔا سوره لقمان

**اى خلقو! وويريږى تاسى (ټول له عذابه) د رب خپل او وويريږى تاسى له هغى ورځى چى نه به شى دفع كولى عذاب هيڅ پلار له زوى خپل او نه هيڅ زوى (داسى وى) چى هغه دفع كوونكى شى له خپل پلار څخه كوم شى (څه عذاب)**

---

تفسير: د طوفان په وخت كښى د جهاز مسافران سخت پريشان، وارخطا وى او له هر انسان سره يوازى د خپل ځان د خلاصون فكر او انديښنه وى، خو سره له هغه هم مور او پلار له خپلو اولادونو. او اولاد له خپل مور او پلار څخه بيخى غافل او بى پروا نه وى. او هر يو د بل د نجات او خلاصى او مرستى (مدد) په فكر او چرت (خيال) كښى وى بلكه ډير كله د واليدنو شفقت غواړى چى هر راز (قسم) زحمت اومسيبت په خپل ځان واخلى چى خپل اولاد له هغه مسيبت څخه وژغورى (وساتى). ليكن د دى په عكس يوه داسى ويروونكى او هولناكه ورځ راتلونكى ده چى په هغى كښى به له هر طرفه هم دغه د ((نفسى! نفسى!)) غږ را پورته كيږى. نه اولاد او نه والدين بلكه هيڅ څوك به داسى يو ايثار او شفقت ونشى كړى چى د بل لږ څه مصيبت په ځان واخلى او بالفرض كه دى و غواړى چى د خپل كوم عزيز لږ څه زحمت په ځان واخلى خو څوك دده دغه غوښتنى او مطالبى ته اهميت او قيمت نه وركوى. نو په هر انسان لازم دى چى لا له اوسه د . هغى ورځى په او فكر انديښنه كښى و اوسى! او هغى لپاره توښه برابره كړى! او زيار (كوښش) وكړى څو د الله تعالى له قهر او غضب څخه مامون او مصون پاتى شى كه نن دوى د سمندر له طوفانه روغ رمټ ووتل نو سبا خو دوئ د حشر له ډګر ځنى په هيڅ صورت نشى وتلى.

# د حضرت عمر (رض) تواضع

حضرت عمر (رض) چي د حضرت رسول اکرم (ص) دوهم یار، د مسلمانانو لوی خلیفه او امیرامومنین وو، په دروازه کښي یې هیڅ یو پهره دار او قابوچي ولاړ نه وو. د ده او د یو عام سړي چندانې توپیر نه کیدی. ځان او خپل کارونه یې دنیمګړتیاوو خالي نه ګڼل. تل به یې ویل " هر څوک چه زما نیمګړتیاوي ماته را په ګوته کړي هغه زما تر ټولو نږدې دوست دی.

ده مبارک (رض) چه به هر وخت د لمانځه څخه سلام و ګرځاوه هر څوک به ور تلل او خپلي غوښتني او عریضې به یې ورته وړاندي کولې. او دی مبارک به د ښار په کوڅو او سړکانو د شپې له پلوه یوازي ګرځیدی تر څو د خلکو په حال ځان خبر کړي. خرابه ځایو او دغریبانو کورو ته به ورتی، د مسکینانو او غریبانو سره به کښینستی او ډوډی به یې ور سره خوړل.

حضرت عمر (رض) د فارس په جنګونو کښي د خبرونو د ټولولو او د جنګ په حال د ځان خبر ساتلو سره ډیره مینه درلوده. او هره ورځ به دښار د باندي وتی او د خبرونو منتظر به وو تر څو یو څوک راسي او د جنګ په حالاتو باندي دی خبر کړي.

یو ورځ یو مسافر پر اوښ سپور ولیدی‌چه په چابکی سره روان دی نو یې پوښتنه ور څخه وکړه چي د کومي خوا راځې؟ مسافر ځواب ورکړ چه د اسلامي لښکرو د مشر له خوا مي امیرالمومنین دپاره داسي خبر راوړی دی چه دښمن ټول مغلوبه سو. حضرت عمر (رض) ددې خبر په اوریدو سره ډیر خوشاله سو او دخدای تعالی حمد یې ووایه. پس له هغه یې په اوښ پوري لاس نیولی او د مسافر سره د خبرو په حال کي د ښار خواته روان سو. مسافر چه کله دا ولیده چه د ښار ټول خلک د ده احترام او درناوی کوي نو مسافر دده مبارک څخه یې بخښنه وغوښته چي ما ونه پیژندلاست ده مبارک(رض) ورته وفرمایل چه ته داریږه مه بخښنی ته هیڅ اړتیا نسته.

یو ورځ حضرت عمر (رض) پر منبر و فرمایل که تاسي ولیدم چه د راستې لاري څخه مي لږ څه تیری وکړ نو ماته یې را په ګوته کړی، په دې وخت کي یو سړی ولاړ سو ویې ویل په خدای(ج) سره مي دي ښه وسي که د راسته لاري څخه لږ څه ایسته سي په توره به دې سموم. حضرت عمر (رض) ددې خبري په اوریدو سره وویل، خدای تعالی دي شکر وي چه په مسلمانانو کي داسي څوک سته چه د عمر نیمګړتیاوي په توره سمي کړي.

# طالبي رسالت

عبدالرزاق
پالوال

دمارکسیزم یا په عمومي توګه سره د کمونیزم دوه مهم مباني (اصول یا اساسات) له بشري ټولنې څخه د بډاینښت او تدین نفي کول دي.(۱) د بشري ټولني د غو دواړو خواوو (دین او ثروت) د انسان له تکامله سره مهمه وده موندلې ده. نو اني جبري نفې یې په ټولنه کښې شدید عکس العمل تولیدوي. د دواړو نفي د ټولني و نظم ته صدمه ور رسوي، او لا یې ویجاړوي هم. په افغاني ټولنه کښې بډایې قشر مال تر سر جار کړ، او سر یې ویوست. دا هغه قرن و چې لا نا بوبره له ژوند وتلي نه و، او مال یې هم ایستلای نه سوای دوی هم د مقاومت توان نه درلود.

د بډایانو له څنګه سره دوهم بشري قشر چې د کمونیزم له تضاده سره مستقیما مخامخ و، متدین خلك و چې طالبانو یې مخکښنه ټل جوړاوه. دوی ثروت نه درلودی چې هغه یې تر سر جار کړی وای، خو یو سر یې لاره او هغه یې تر ایمان او هیواد جاراوه. ځکه نو دوی هم پر میدان ودریدل، او هیواد یې پرې نه ښاوه. دوی جهاد اعلان کړ او بې ثروته او کم ثروته مقتدیان یې پسې و دریدل، نور بې ثروته او کم ثروته مجاهدین چې په بیلابیلو ګوندونو کښې تنظیم کړل سوي و هم د دطالبانو او ملایانو دوعظ او ارشاد له برکته څخه پاخیدلي و. دوی جهاد په بریالیتوب سره وپای ته ورساوه.

کله چې په ۱۹۹۲ م کال کښې کمونیستي رژیم په افغانستان کښې ړنګ سو، طالبان بیا هم د نورو تاریخي څپاندو بحرانونو تر قرار وروسته و خپلو مسجدونو او مدرسو ته ستانه سول. د ژغورلي هیوادچاري یې و تنظیمونو ته ور پرېښوولې. تنظیمونو تر دوو-درو مرکو وروسته د ښاغلي صبغت الله مجددي تر ریاست لاندي ګډه حکومت جوړ کړ. مسعودي - پرچمیانو د ښاغلي مجددي پر ضد باندي په کابل کښې یو ځای او بل ځای تور اور بل کړی وو. ده د دوی له لاسه څخه و نه کړای سوای چې خپله دوې میاشتنۍ دوره نوره هم اوږده کړي. ځکه نو بلې مرکې ښاغلي برهان الدین رباني د جمهوریت پر چوکۍ باندي د څلورو میاشتو له پاره کښیناوه. د ده په وخت کښې هغه ګډ حکومت دړې-وړي سو، او په کابل کښې قدرت د مسعودي- پرچمیانو په لاس کښېوت. له دغه سره سم پر کابل باندي د تنظیمونو جنګ پیل سو. څنګه چې روسي-اسلحې او درستي ګدامونه د پرچمیانو په لاس کښې وو، او نوځکه یې هم اورنۍ قوه زوروره وه چې هوایې قواه هم ورسره ملګرې وه. نو یې دکابل هغه برخي چې د مخالفو یا دښمنو ګوندونو په لاس کښې وې ژر په کنډوالو سره واړولې. خو د کابل هغه برخي چې د پرچمیانو او مسعودیانو په لاس کښې وې، تر اوسه پوري سالمي پاته دي.

څنګه چې قدرت د پرچمي مسعودیانو په لاس کښې وو، نو یې برهان الدین رباني په شعوري او غیر شعوري توګه سره په ((طو)) کښې اخیستی و او هم دی. که څه هم دی د هغې لاري سړی نه وو چې هغه مسکو ته تله. دغه مانا دا چې حکومت بیرته په مستقیمه او غیر مستقیمه توګه سره د مسکو په کرښپل (خط مشي) باندي روان وو. مسکو هم بانك نوټونه ورچاپول او هم یې وسله او مرسته ورلیږله چې لا تر اوسه پوري یې هم کوي. برهان الدین رباني دغه مسکوي پیسې وهغو تنظیمونو ته ورکولې چې دده پر خوا وو(۲). دغه کار داسي دنګلي و لړلې چې ښایې هدف به یې دغه وو چې له یوې خوا څخه د قومندانانو تر منځ پر پیسو باندي جنګونه و موښتل، او له بلې خوا څخه تنظیمونو چې پیسې نه ور رسیدلې - هم یې لاري نیولې -

ځنځیرونه یې پر سرك باندي اچولي وو ـ او هم یې کورونه وهل.

څنګه چي مجاهدین مسلح او ملت غیر مسلح و او هم یې غاور نه درلودی، نو دغو مجاهدینو داسي چپه چرلنډۍ په و وهلې چي نه یې د باندنیو شورویانو څخه لیدلي وې، او نه هم له کورنیو کمونیستانو څخه. د خلکو نه سر خوندي و ـ نه مال! نه یې زامن د ځان وو او نه هم لوڼې! چانه د ځان واك درلود او نه د ماندینې یا میرمنې. د قومندان د امر نه منني سپکه جزا دا وه چي په کندهار کښې به یې هغه شپه او ورځ له جنګي سپي سره تړی. د وهني، ټکوني او ویشتني غور یې هم چا نه سوای کولای. مجاهدینو خپل ښه جهادي نوم بایلاو، او خلکو د ټوپکیانو نوم پر کښېښناوه.

یو له هغو عواملو څخه چي طالبان یې له مدرسو څخه بیرته د جنګ میدان ته ور وبلل دا وو چي هیواد یې د تجزیې له خطره سره مخامخ ولیدی؟ بل عامل یې د ټوپکیانو له خوا د ښځو بې عفتي وه او هم نور فسق وو فساد خپل اوج ته رسیدلی و؟ دریم دا چي په هیواد کښې ملوك الطوایفي جوړه سوې وه. هر امیر او هر قومندان پر خپله لویه یا کوچنۍ اوبجه باندي پادشا وو. د خپل پیسو موندني لپاره دفابریکو او کارخانو ماشینونه د ګاز، به اره سره پرې کول او هغه یې په تاله په پاکستان کښې د اوسپنې په بیه خرڅول. دغسي یې هم د برق او تلیفون اوسپنیزي خادې و پاکستان ته رسولې او هورې یې پلورلې. دوی چوراچولي وو چي نه یې د دولت پر مال صرفه کوله او نه هم د ملت، چي ډیري نوري اوږدې او لنډې مو یې پرې اینښې دي. په افغانستان کښې د څه پنځو کالو لپاره نه حکومت وو نه قانون! نه رسمیات وو ـ نه یې ثبت. د هر ټوپکي چي هر څه زړه غوښتل، هغسي یې کول. دغه عوامل د دې باعث سول چي طالبان دملت او مملکت و درد او غم ته له خپلو مدرسو څخه ور خوځیږي او په چاره یې پسې سي. دوی داسي وکړل او لاتر اوسه پوري یې هم په چارو بوخت دي.

د طالبانو رسالت لاتراوسه پای ته نه دی رسېدلی. دوی د هیواد ډیره برخه سره متحده کړې ده، خو یو کونج لا بیا هم پاته دی. دوی له افغانستان څخه دتجزیې خطر تر ډیره اندازه پوري لیري کړی دی، خو لا په بشپړه توګه سره نه. دوی د باندني خطر ناك لاسونه د افغانستان له ګریوانه څخه کښلي او لنډ کړیدي، خو ځیني لاسونه لا بیا هم لږ وو ډیر خطرناك کارونه کوي. دا د طالبانو رسالت دی چي دوی به د مسکو ناولي لاس د افغانستان له ګریوانه څخه کاږي، او موږ به ورته له قادره خدایه څخه برکت او نصرت غواړو. دغه ملي او اسلامي ستر کار د بل چاله چکو څخه نه پوره وو او نه هم دی ـ که وو، نو یې ولې نه کاوه؟ طالبانو له خلکو څخه ډیره وسله او درسته ټوله کړې ده، خو لا یې بیا هم کار بشپړ نه دی ـ اوس هم ډیره وسله په هغو سیمو کښې پټه ده چي د طالبانو تر لاس لاندي دي. ځکه چي دوی هورې هم مخالفان او لا حتی دښمنان لري. دوی په هیواد کښې تر ډیره اندازه پوري امنیت ټینګ کړی دی، خو د ماتیدني خطر یې بیا هم هر کله سته. ځکه چي په خلکو کښې هم بدې او بدوالی سته او هم اقتصادي شرایط خراب او ژوند یې ګډوډ دی. دغه ټولې نیمګړتیاوي د دلالت پر دې کوي چي د طالبانو رسالت پای ته رسیدلی نه دی.

هر کله چي طالبانو د افغانستان ګوښې کونج هم د تجزیې له خطره ژغورلی وي، او هر کله چي طالبانو وړاندي یا دې کړې نیمګړتیاوې هم بشپړې کړې وي، لا بیا هم ملت او مملکت د دوی و دوو ـ درو نورو کالو و حاکمیت ته اړتیا لري څو غلي اوباش دښمنان او توران بیا هم هرچیري پیدا سوي نه وي او دملت امنیت او د مملکت مځکنۍ بشپړتیا نو یې له خطره سره مخامخ کړې نه وي نو د خلکو کړه په دې پوره وي چي چیري نوره وسله پټه پاته نه ده.

هر هغه زمان چي دطالبانو رسالت و پای ته رسیدلی وي، هر هغه ګړی د بل تاپي وخت دی؟ په دغه موقع کښې د. طالبانو مخالفین او نور هر څوك داحق لري چي دوی هم

د «ستري محکمې» رغ پورته کړي او یا هم د «ګډحکومت» غوښتنه وکړي. تر څو چې د طالبانو رسالت د بشپړ تابه و ټاپې ته رسېدلی نه وي، هره غوښتنه به «تر اوبو دمخه ګاولي کښلې وي» چه او ستر بل به یې ښایې ډیر خطر ناك وي. ځکه چې دملت مصئونیت او د مملکت مځکنی بشپړتوب په خطرکي اچوي. یعني له قدرته څخه د طالبانو په لوېدنه افغان ضد عناصرو د دوران ته ور وګرځېږي. نو به ملت بیا له ناورینه سره او مملکت به د تجزیې له خطره سره مخامخ وي. ځکه بله داسي امنيتي او دفاعي قوه خو تر اوسه پوري نه لیدله کیږي چي هغه دی د طالبانو ځای و نیولای سي څو د بل هر رازخطرمخه یې نیولي وي. که به څوك وایې چي دوی دغسي قوه برابرولای سي، نو اساسي پوښتنه داده چي ولي تر مخه له لویه سره څخه لانه جوړوله چي د طالبانو وپاڅون ته به هیڅ اړتیا پاته نه وای. او هم به ملت ډیر نه کړېدلای؟ که به بیا هم څوك د طالبانو پر ضد باندي یوه دغسي قوه برابروي، نو د جوړښت او فعالیت میکنیزم یا تلیسم به یې څه وي؟ ـ زر که زور؟

که به څوك دا خوب وینې چي طالبان د امنیت اودفاعي چاري پر غاړه واخلي او د ننګ چاري لکه وزارتونه، سفارتونه، او ریاستونه دي و دوی ته ور وسپاري، او هم دي طالبان د دوی‌تر امر لاندي وي چي دغه به نو هغه خیالور ګډ یا پراخ بنسټه حکومت وي چي دباندنیانو هم له خولې څخه نه دی اچولی. نو طالبان ولي هغه چاته حکومت وسپاري چي نه یې افغانستان په ژغورنه کښي او نه یې دملت په متحد کولو کښي کله د دوی ملا تړلې وي.

ما هم اوریدلي او هم مي لوستلي دي چي مخالفین وایي طالبان د کار اهل نه دي. دوی د دولت په چارو نه پوهیږي. د دغه اتهام او تور ثبوت څه دی؟ څوك چي د غسي ادعا کوي، باید خپل شواهد او د لایل هم سم ورسره وړاندي کړي. برخلاف، طالبان په نه څه معاش سره د پیلاتو کار کوي ـ دوی دجنګ او ننګ چاري هم په بیړه او هم په ښیګڼه سره پر مخ بیایې. د طالبانو مخالفان دي یو کار وکړي. دوی دي پر طالبانو باندي خپل اعتراضونه یا هغه څه چي دوی یې د طالبانو بدی بولي، د ترازو په یوه پله کښي کښیږدي، او د مملکت اوملت له پاره دي د طالبانو ښېګڼې د ترازو په بله پله کښي کښېږدي. بیا دي نو د ترازو شئین پورته کړي، او سیل دي وکړي چي د دوی پله درنه ده که د طالبانو؟ راسی چي دغه کار موږ پخپله وکړو. د مخالیفینو اعتراضونه یا هغه څه چي دوی یې د طالبانو بدودی بولي، د ترازو په کیڼه پله کښي ږدو، او د طالبانو ښېګڼې د ترازو په ښی پله کښي:

د ترازو ښی پله:

۱ د هیواد د مځکنی بشپړ تابه تثبیتونه.
۲ د افغانستان ملیتونه (طوایف اوقبایل) سره متحد کول.
۳ په ټولنه کښي د سراسري صلح او امنیت ټینګونه: دجنګ، مرګ، او غلا مخنیوی.
۴ رشوتونه او خیانتونه په دوی کښي نسته او هم یې د جدیت سره مخه نیسي.
۵ د فسق او فصاد، فحشاء او قمار امحاء.
۶ چرس، تریاك، هروئین او حتی سګریټ منع کول.
۷ د ملت یوازنی ارمان چه اسلامی نظام دی تر سره کول.
۸ د هر ډول قومي او نژادي تبعیض له مینځه وړل.

د تلي کیڼه پله:

۱ دنجونو ښوونه او روزنه نسته.
۲ ښځي ازادانه کار نه لري.
۳ په خلکو په زوره لمونځونه نه کوي، روژې په نیسي ږیري په اوږدوي.
۴ موزیك، تلویزون، سینما، تصوریرونه او نه پریږیدي.
۵ ګوندونه او ازاد انتخابات نه پریږدي.

**که څوك تله د انصاف په لاس کښي درکړي**

**خپل ښو او د بل اس په برابرکړي**

له طالباني ښځو څخه که نور هر څه ایسته پریږدو، او یوازي «دافغانستان مځکنی بشرتوب» د تلي په ښي پله کښي وي، د تلي په کینه پله به، سره له ټولو اعتراضونو، په مشتري پسي اسمان ته پورته کیږي. خو ښي پله به یې د افغاني مشتریانو له پاره په افغانستان کښي پر مځکه پرته وي. د طالباني ښځو بله هره شمیرنه هم دغسي د اهمیت او ارزښت ور نه ـ و عیان ته څه حاجت د نور بیان سته. خو د کیڼي پلې شمېرني او توکي نوره څېړنه غواړي.

۱- دنجونو ښوونه او روزنه په محدوده اندازه سره سته، او هغه هم په کابل او هرات کښي چي دسویډن تعلیماتي موسسات یې پر مخ بیایي. و طالبانو ته تر دغه کار نور ډیر کارونه اولیت لري. دوی یې دمکاتبو و ترمیم او سمبالوني ته نه بودجه لري او نه هم معلماني ورته لري. د نوو درسي موادو برابرول و خت نیسي. د مخنیو درسي موادو کمونیستي خوند و رنګ و بوی لاره. په د مخنیو ښځو ښوونکو یې طالبان اعتماد نسي کولای. دا ځکه چي هغوی به په کمونیستي ګوند کښي تنظیم سوي وي. ځینو تنظیمي مشرانو لا په ۱۹۸۰ م کال کښي افغاني معلمان د مهاجرینو و کمپو ته نه پرېښوول. نو طالبان ولي ملامتوی؟

۲- که لېوان په رمه رورږد سوي وي، د مخنیوي لپاره یې دوې چارې سته. یو به غیلې په خوندي شپاله یا ګاچ کښي ساتې او بل شپنیان شپه ورته روڼوي. که رمه پر دښت باندي پنته وي، د شپنیانو به یې بشپړه ساتنه له توانه پوره نه وي.

د کمونیستانو په وخت کښي بالخصوص د کابل ښځي ډیري ازادي روزلي سوي وې. دوی به په بازارانو کښي د اروپایې ښځو غوندي ځانونه سینګار کړي، تنګ پطلونونه یا لنډي لمني اغوستي ګرځیدلې. کله چي تږي او ژلخوړي مجاهدین پر کابل باندي چاپیر سول. دوی یې په تښ کاته سره اغوا کړل. نور یې نو دوی په دې پسي نه ګرځیدل او نه هم په پوهیدل چي کومي یې پاکي دي او کومي یې ناپاکي دي. نو د پاکو ښځو پر عفت باندي هم تجاوزونه وسول. په دغه کار سره هم د مجاهدینو نېك نوم په توپکیانو سره وا وښت. د بې انصافی ځای دا دی چي هغه فعالین سنده خوله پاته وو.

کله چي طالبان پر کابل باندي چاپیر سول، نو له دوی سره به خود دابیره ورسره وه څو نه ګانه د هاروت اوماروت کانه په سوې نه وي، کومو چي د بي بي زهرا پسي پایځې ور رغښتي دي څو دا ځني وا لووته او اوس د مځکي او اسمان ترمنځ معلقه پاته وه چي تاسي یې هم هر تره غونې لیدلای سي.

نو ددې لپاره چي نه دښځو عفت باندي بیا چا تجاوز کړی وي او نه هم طالبان په بدنام کړل سوي وي، طالبانو و ښځو ته وویل چه د ننه به مو کورو کښي کښیني او که کله وتلاتست هم به پقره (برقع) اغوندی. څو پېژندل سوي وي، نو باید محرم هم ورسره وي.

دښمنانو د طالبانو پر ضد باندي له هراړاز وسلې او وسیلې څخه کار اخیست او هم یې اخلي. طالبانو په مکرورویانو کښي څلور ښځي و نیولې چي توري پاڼي یې خپرولې. دوی په تحقیقاتو کښي ویلي دي چي وظیفه یې د طالبانو اغوا کول دي چي نور به بیا رسوایې ځني جوړوي. دغسي تهمتونه پر طالبانو باندي دامریکا رږغ رادیو له له درې ځانګي څخه هم خپاره سوي دي. په دغسي حالت کښي به کوم دوست له طالبانو څخه دا غوښتنه کوي چي دوی دې په دغه اضطراري حساسه مرحله کښي و ښځو ته ازادي ورکړي څو په دفترونو کښي یې کارونه کړي وي

۳- حضرت حسین (رض) څه یو زر څلورسوه کاله دمخه دجنګ په میدان کښي پر خلافت باندي په جنګ کښي شهید کړ سوی دی، شیعه ګان اوس لا لس ورځي ویر او ماتم کوي. موزیك او خوښي پکښي ممنوع ده. نو شیعه ګان چي د څوارلس سوه کاله د مخه د لیري کربلا غم او ویر تر اوسه پوري پالي، پر موږ باندي هره ورځ د مرګ او ژوبلي ویر دی. نو ایا موږ باید دونده بې احساسه او بې پروا اوسو چي د خپل یو زرونو هیوادوالو په مرګ او ژوبله خوږمن او ویرجن نه سو؟ دغه شهیدان او ژوبل سوي

معیوبین هم هغه طالبان دي چي د ملت او مملکت یا زموږ او ستاسي لپاره جنګیدلي دي او جنګیږي. موږ که باوجدانه او یا احساسه خلك و اوسیږو باید دا کاهښت او اندیښنه را سره وي چي سبا به د دوی حق څنګه ور ادا کوو؟

۴- دا ډیره زړه وړنا ده، خو اوس کله نا کله هم له طالبي مخالفانو څخه اوریدل کیږي چي وایي: "ډیره زما ده، خوواك یې د ملاعثمان". زه ګمان نه کوم چي په طبیعي اوږده ډیره سره دي څوك دروند سوی وي. دا چي د ځواني له خیاله سره سم په هنداره کښي مخ او ځان ـ ښایسته نه ورته ایسي، دونده لوی ویر نه دی. تاسي زیار وباسی. څو د افغانستان ارضي تمامیت ژر تثبیت سوی او د ملت ملي اتحاد سم تامین سوی وي. هرکله چي دغه کار تر سره سي، نور به هر څه خدای اسانه کړي ( یوبل څه لاهم ووایم چي نوموړی ملا عثمان خورا تکړه سړی تیر سوی دی. یوه بله وینا ده چي وایي: "نشرح هغه الم نشرح ده، خو خوله دملاعثمان غواړي").

۵- هر ګوندي حکومت خپله ځانکړې پالیسي لري. نو که د دولتي ځانګو مشران نور څوك وي هغوی به څه مکلفیت لري چي پخپلو چارو کښي به طالباني پالیسي عملي کوي؟ دا چي طالبان د کارو اهل ته کار نه ورسپاري، سم ا و صحیح اعتراض نه دی، ډاکټران طالبان نه دي، پیلوټان طالبان نه دي، برقیان، انجینران او هم نور داسي طالبان نه دي. زه دوه کاله تر مخه په کابل کښي و افغانستان اکاډیمي ته ورغلم. هوري مي دوه کسه طالبان لیدلي نه دي. هغه پوهان چي ما هوري ولیدل، هغوی طالبان نه ول. البته دطالبانو مخلفان به هم نه وو.

۶- د طالباني حکومت په سینه باندي داوسامه بن لادن توره خپسکه پرته وه. پر هغه باندي د "تور_اور" اشتباه وه، داچي واقعا تور اورني و که نه، ما غوندي ځانکړي اشخاص یې دحق و ناحق قضاوت نسي کولای. خو یو څه په زغرده سره وایم چي په پکتیا کښي د ژوري کمپونو په طالبانو پوري هیڅ اړه نه لرله. د ټولو هغو قراینو او شواهدو له مخي چي زه کله ورسره مخامخ سوی یم د لالت پر دې کوي چي طالبان سپین خلك دي، او په هیڅ توګه سره تور اور نیان نه دي، او نه د تور اوړ پالنه کوي.

۷- داچي طالبان په څنګ کښي نور ګوندونه او ازاد انتخابات نه پریږدي، تر وخت دمخه او نو ځکه هم سالم اعتراض نه دی. د جنګ په وخت کښي به هر چیري، که به څه هم دغه اروپا او امریکا وي، ټول موجود ګوندونه یو لاس کیږي. د دوی ن اتحاد به تر هغه وخته پوري دوام کوي څو جنګ و پای رسیږي، او په تیره بیا چي جنګ د دوی پر خپله خاوره باندي وي. څنګه چي د جنګ په وخت کښي ګوندونه او ګوند بازی دملت په منځ کښي تفرقه اچوي، او په نتیجه کښي یې دولت له ماتي سره مخامخ کیږي، نو په اوس کښي دمخالفانو دغه راز غوښتني معقولیت نه لري. او منښه یې د ملت او مملکت لپاره په خطرناك تاوان سره تمامیږي. که فهم لري باید له طالبانو سره متحد سي.

ازاد انتخابات، چي افغانستان یې هیڅ تجربه نه لري، اوس دي هغه وخت امکان لري چي په مملکت کښي صلحه او ارامي تامین سوې وي. دا دبل کله خبري دي. اوس دي په جیب کښي وساتلي سي.

په وړاندني مقایسوي معادله کښي، د ښي پلې کارونه، بالخصوص لومړني او دوهمه شمېرني، داسي چاري دي چي وبل کله ته نسي پریښوولي کېدلای ـ دغه د ورخ اوبه دي، که یوه پلا تیري سولې بیا نه را ګرځي. خو د ګیڼي پلې چاري و بل کله ته ځنډولي کېدای سي.

مخالفان وایي چي طالبان دي هم دغه کوي هم هغه ـ دوی دي دوې هندوانې په یوه لاس کښي واخلي. دا خو داسي معنی لري کله له دوی سره چي د ښي پلې او کیڼي پلې د تضاد درك نه وي چي ظاهیرا ښکاریږي هم نه. د لوېدیځو مترقي هیوادونو تقاضاوي هم له دغه قراره څخه دي چي دوی وایي طالبان دي ټولي چاري په یو وخت کښي تر سره کړي. نو ترڅو چي د طالبانو رسالت، چي هغه ا فغانستان د مځکني بشپړتابه تثبیتول او د ملي یووالي ټینګول دي، په باوري توګه سره وپای ته رسیدلی نه وي، د طالبانو مخالفان که پر اینه تریخی نه لري چي په دغه ملي تاریخي مرام کښي د دوی ملاتړ وکړي، ارام او منډه خوله خو دي کښیني.



لیوني ابي د کلي د نجونو او هلکانو په مرسته د توت په یوه لویه ونه کي تال جوړ کړ- تر څو پدې تال کي وزانګي او خپل غم پرې غلط کړي ځان ته مشغولا پیدا کړي او ژوندته ښکلا ـ دا لیوني نه وه خو کلیوالو ورته د لیوني ابي خطاب کاوه ـ دې د ژوند د حوادثو او ناخوالو ډیر ترخه جامونه چښلي و ـ دا چه به کله کله له تال څخه را کوزه شوه ـ تر ویرجن او ساړه اسویلي وروسته به ئي تال ته نژدې د کلي ماشومان ـ نجوني او هلکان پر ځان راټول کړه هغو ته به ئي د توحید یا شهادت کلمه وروښودله!

د کلي ټول خلك د لیوني ابي له دې کار څخه راضي او خوشال و ـ ځکه هغې د کلي د ماشومانو د پاره د تعلیم او لوبو زمینه مساعده او تنظیم کړې وه ـ او کله نا کله به ئي دوی په تال کي هم زنګول ـ د لیوني ابي د تال ماحول ـ د یوې کلیوالي مدرسې حیثیت درلود هغې به د تعلیم په څنګ کي ماشومانو ته تر خپل منځ د جګړو د زیانونو په هکله هم معلومات ورکاوه او دوی به ئي د جنګ او جګړې څخه منع کول ـ لیوني ابي په د معمول سره سم هره ورځ د ماشومانو پښې او لاسونه کتل ـ چاته به ئي افرین او چاته به ئي د پاکوالي په هکله په زړه پوري لارښووني کولې ـ تر څو ماشومان د خپل ځانو د پاکوالي سره عادت ونیسي روغ او رمټ ژوند وکړي لیوني ابي د خپل کور څخه ځکه د توت تر ونه لاندي ژوند غوره باله ـ چه د ځلورو زامنو جنازې ئي په یوه ورځ راغلي وې ـ دوی د روسي یرغلګرو او داړه مارانو لخوا په شهادت رسیدلي وو لیوني ابي له دغه وروسته له ځان سره پریکړه کړې وه ـ چه بیا به د ژوند تر وروستۍ سلګۍ پورې د ورځي دا ویرجن کور ونه ویني ـ ګنګو ماښام به ورځي او د سپیدو چاودو به دمخه تر وزي ځکه یوازې لیوني ابي او غم ئي پدې کور کي اوسیدې ـ هغه اوس بې زویه وه ـ په کور کي ئي داسي څوك نه و پاتي چه لیوني ابي ورسره مینه او د زړه خواله وکړي ـ نو ځکه ئي د توت تر ونې لاندي د ژوند بې خونده او ترخې ورځي شمېرلې ـ او تال ئي هم دکلي د ماشومانو دپاره جوړ کړی و چه دوی پرې راټول شي ـ او دا د خپلو نازولو اوځوانیمرګو شهیدانو بچو مینه پرې ماته کړي ـ خو مرګ د هر چا په قسمت دی او هیڅ څوك له دې نعمت څخه ندی محروم شوی!

قضاء راغله لیوني ابي د خپل جوړ کړي تال څخه د سر پر څېرې را ولویده د یوې لوی کرکندې سر ئي ټکر و خوړ ـ د ژوند د ټولو ارمانونو ـ غمونو او ناخوالو سر ئي د ټل د پاره خدای په اماني وکړه د ستر ګو په رپ کي په روڼه ورځ د ګور میلمنه شوه او د بچیو همسایه شوه.

لیوني ابي له ارمانه ډك زړه ولاړه هغې ته د اسلام او وطن د غلیمانو په وینو منګلی سرې نه کړای شوی ـ دې د روسي یرغلګرو څخه د غچ اخستلو ارمان د خپلو بچیو د سنګر ملګر مجاهدینو ته په میراث پرېښود ـ غازیانو هم د خپلې اسلامي عقیدې د اصل په پیروي خپله جهادي مبارزه توده په توده وساتله.

د روسي داړه مارانو او دهغو د سر سپارلو په وړاندې ئي هیڅ ډول ایثار او فداکاری څخه ډډه ونه کړه ـ هغو په پوره متانت او میړاني پر سره فوځ خپل مرګوني ګذارونه تیز کړل ـ هغو ته ئي د خپلو نا معقولو ظالمانه کړو وړو مجازات ورکړ ـ د اد زمانې افسانوي مستکبران ئي په ګونډو او سخت و ځپل د افغان مسلمان ملت په وړاندي ئي د کرملین د تحلیل ګرانو د سیاسي ـ نظامي او تبلیغاتي ډنډورچیانو کرغیړني څیرې نړیوالو ته و ښودلې ـ مجاهدینو د خدای په نصرت د مادی فلسفي اغزنه ونه د اسلامي فلسفي د حقانیت په تبر غوڅه او ریز مریز کړه ـ د افغان مسلمان اولس د قهر او غضب په اور کي لمبه او ایره شوه ـ ددې شهید پالونکي هیواد د شهیدانو ارمان د خدای په مرسته او د اتلو مجاهدینو طالبانو په بې ساري سرښندنه تحقق وموند او اوس روسان په ځوړند مغزي له دې مقدس خاوري څخه و تښتیدل ، په دې شهید پالونکي هیواد کي اوس سوچه اسلامي نظام نافذ او افغان مسلمان اولس د اسلامي امارت تر سیوري لاندې پټمن او ډاډمن ژوند تېروي.

**عبدالحمید ارغنداوی**




ژباړه:
محب الله اسحاقي

په افغانستان کي په نوي نړیوال ډول د پستي خدمتونو ۱۴۰ کاله کیږي، چي د امیر شیر علي خان په وخت کي د برطانوي هند پر ډول جوړ سوي وه. په هغه وخت کي پستي غوټي (بارونه) و خانګړیو رویبارانو (قاصد) یا ډاك چي دکابل او پېښور تر منځ یې فعالیت درلود لېږدول کیده. په اول سر کي سریښ لورونکي پستي تکټونه کاریده. ددغه پر ځای به د لیك هغه پاکټونه کاریدل چه د یو خانګړي نظامنامې لـه مخي به تړل سوي او په ټاپه چه په هغه کي به د هغه د مالیې لګښتونه او د مشر نوم کیندل سوي وه ټاپه (مهر) کیده. په افغانستان کي لومړنی سریښ لرونکي پستي تکټ په ۱۸۹۳ ع کال کي منځ ته راغی.

د امیر امان الله خان په وخت کي د مختلفو ډولونو (شکلونو) پستي تکټان را و وتل، چي له هغو څخه په یوه کي د خپلواکی ستوری او د باچا خپل خول (تاج) انځور سوی وو. یو لړ شمیر سیمیز پستي تکټان په جلال اباد او مزارشریف کي چاپ سول.

په ۱۹۲۸ ع کال کي یو فرانسوی پوه د پستي تکټانو لپاره و ګمارل سو تر څو د افغانستان پستي خدمتونه د نړیوالي ګچي (ستنډرډ) سره سم کي او افغانستان د پست د نړیوالي ټولني غړی کي. نو د همدې شي پر بنسټ په ۱۹۲۸ ع کال کي افغانستان د دغي ټولني په غړیتوب و منل سو. دې فرانسوي پوه و افغانستان ته نوي ماشین الات راوړل او یو شمیر نوي پستي تکټان یې چاپ کړه چي یو جاپانی نقاش طرح کړي وه. نو له همدې نیټې وروسته د افغانستان په پستي تکټانو کي د Postes Afghanes یا Postes Afghanistan فرانسوی کلمو چاپ تر ستر ګو کیږي . کال کي پر پستي تکټ د خپلواکی د نوي څلي د جولي (عکس) په چاپولو سره افغانستان خپل لومړنی جولیلرونکی(مهور) پستي تکټان چاپ کی.

د ۱۹۲۹ ع کال په اړودوړ کي د پستي ټول د فترونه رنګ یا خو لوټ سوه. "د سقاو زوی حبیب الله" د مخکني پستي تکټانو پربنسټ څو ډوله نوي پستي تکټان چاپ کړه. د نادر شاه سلطنت په لومړیو کي د پستي تکټانو کمښت او د یو زیات شمیر پستي تکټانو و شخصي لاسونو ته د ورلویدو دافغانستان پست ته ډیر لوی کړکیچ (بحران) سره مخامخ کی نو ځکه محمدنادر شاه مخکني ټول پستي تکټونه له اعتباره لویدلي اعلان کړه او له منځه یې یووړه. د محمد نادر شاه د وخت په پستي تکټانو کي د دولتي ودانی لکه د ملي شوری ودانی. د سلا مخانې مانی او مهم تاریخي ودانی لکه د مزار شریف زیارت او داسي نور څرګندیږي.

د محمد ظاهر شاه په دوره کي په پستي تکټانو کي نوي موخې (هدفونه) او نوښتونه را منځ ته سوه. د علي اباد د روغتون یو ښکلی جولی (عکس) پر پستي تکټ باندي چاپ سو او هغه ایکی (پیسې) چه د دغه پستي تکټ له خرڅولو څخه په لاس راتلې هغه د مرستي په ډول د چنګاښ (سرطان) د ناروغی پر ضد جوړ سوي مرکز ته ورکول کیدې.

په هم هغه وخت کي د پست خدمتونو د موجود دود پر خلاف د لومړي ځل د پاره د محمدنادر شاه جولی (عکس) پر پستي تکټ چاپ سو.چي تر ۱۹۳۹ ع پوري همداسي د وخت د پاچا جولی (عکس) پر پستي تکټانو باندي چاپېدی. تر ۱۹۳۹ ع کال وروسته د اوږدې مودې لپاره د پستي تکټانو طرح او انځوڼ (ډیزاین) عبدالغفور برېښنا کوی. په همدغه کال د پنځو افغانیو په ارزښت یو پستي تکټ چي د کابل په هوا کي د یوې الوتکي الوتنه ښکاره کول، انځور سو. او په ۱۹۵۱ ع کال کي تاریخي اثار لکه کلابست، د تېموریانو د دوران د هرات څلي او د بامیانو د بودا دمجسمې پر پستي تکټانو باندي چاپ سوې هغه پستي تکټان چي پر بشري او کمکي مسایلو باندي چاپیده د افغانستان د پست په تاریخ کي لوی رول لري. په ۱۹۴۸ ع کال کي دماشوم د نړیوالي ورځي د لمانځلو په خاطر یو پستي تکټ چي د یوه وړي ماشوم جولی (عکس) پر وو چاپ سو. داپستي تکټ یو څو ورځي و چلیدی هغه وخت دولت پریکړه وکړه چي د موسسو، د خانګړو خلکو د یوې ورځي عواید او ددې پستي تکټ څخه په لاس راغلي نیمی ایکی به په سیمیزه پروژو او پاته نیمی به یې د یونسیف په چوکاټ کي دماشومانو دپاره و نړیوال صندوق ته دمرستي په ډول ورکوي. په را وروسته کلونو کي د نړیوالو موسسو د خانګړو ورځو لکه د

ملګروملتونو ورځ. یونیسکو، د بشر دحقوقو. کډوالو، نړیوالي روغتیا، سره صلیب او نورو په په مناسب پستي ټکټان چاپیده

په ۱۹۴۸ع کي د افغانستان پست هغه وخت د یو بل کړکیچ (بحران) سره مخامخ سوه کله چي دولتي مطبعه د رنګه او عصري پستي ټکټانو د چاپولو په اړه خپله بېوسي څرګنده کړه نو ځکه د افغانستان پست په خپل اتیا کلن تاریخ کي د هیواد څخه د باندي د پستي ټکټانو د چاپولو پریکړه وکړه. نو ددې کار دپاره یې په لندن کي د یو کمپنۍ سره تړون لاسلیك کی او ۱۹ میلیونه قطعي نوي پستي ټکټان چي د کندهار د ښار او د غزني د بري د څلیو (منارو) جولیان (عکسونه) پر وه چاپ کړه چه د ۱۹۰۱ ع (۱۳۳۰ لېږدیز لمریز) کال د لومړي ورځي (نوروز) په مناسبت یې و خرڅلاو ته وړاندي کړه.

په ۱۹۰۰ ع کال کي د افغانستان د ملي پست د پنځه اتیایمي کلیزي دلمانځلو په اړه دوه نوي ټکټان چي پر یوه د امیرشیرعلي خان چه د افغانستان د پستي خدمتونو ستېنباند (موسس) او پر بل د یو افغان پسته رسونکي چي پر شاوخوا یې کوچنیان راګرځېدلي دي، جولی چاپ سوه. ددې سره یو ځای په کابل کي د افغانستان د پستي ټکټانو د غونډلي (کلیکسیون) ننداره پرانستل سوه. اوله دغي نندارې څخه په لاس راغلي ایکی (روپی) د یوه پستي لرغونتون (موزیم) د جوړلو لپاره و منل سوې

تر دې یو کال وروسته دولت د "پښتونستان" په نامه لومړی پستي ټکټ چاپ کی. وروسته په ۱۹۵۷ ع کال کي د ۱۵۰ افغانیو په ارزښت یو پستي ټکټ چاپ سو چي د بزکشی جولی (عکس) پر وو. په دې پسې په ۱۹۶۰ ع کال کي د المپیك د پنځه ار غړیو لرونکی یو پستي ټکټ چاپ سو او په ۱۹۶۳ کي د اتاترك (د نوي ترکیې ستېپساند (موسس)) د جولي (عکس) په چاپولو سره په تاریخ کي لومړی خل د افغانستان پر پستي ټکټ باندي د یو باندني مشر جولی دی. وروسته د افغانستان پر پستي ټکټانو باندي د تاریخي او تکړه افغاني څېرو لکه البیروني، عبدالرحمان جامي، جلال الدین بلخي او د افغانستان د حیواناتو او نباتاتو جولیان چاپیږي. په ۱۹۶۸ ع کال کي د ملکې حمیرا (د پخواني باچا محمدظاهرشاه میرمن) جولی د مور د ورځي په مناسبت پر پستي ټکټ باندي چاپ سو

د ښاغلي محمد داود خان په جمهوري دوره کي په پستي ټکټانو کي د منځپانګي (محتوا) او جولیانو (عکسونو) له مخي ډېر بدلون راغلی دده ښاغلي جولیان پر یو څو ټکټانو باندي چاپ سوه. (د کمونیستانو لخوا) د جمهوري نظام تر نسکورولو وروسته په اتیایمه لسېزه کي په پستي ټکټانو ډېره تبلیغاتي او سیاسي بڼه درلوده. د نره کي د جولیانو لرونکو پوستي ټکټانو په شمول ټول پستي ټکټان بشپړ سمبولیك وه چي په هغه کي "سوسیالیستي ریالزم" زیات څرګند وو یعني د بزګرانو، ترکاڼانو، کوچنیانو د ډلو او لینن د وینا کولو د حالت او نور داسي جولیان په پستي ټکټانو باندي چاپ سوه. په همدغه وخت کي د نظامي عنصرونو جولیان چي مخکني دولتونه ډېره ښني کول لکه د ټانکونو، "د سوسیالیستي نظریې د سرتیرو" ښځه د یو کوچني سره، کوتره او ټوپك، د خلکو موټ تړل سوي لاسونه. انقلابیان د بیرغ وړلو په حالت کي، په پستي ټکټانو باندي چاپ سول.

د دغو ټولو سره د ۱۹۸۰ ع کال لسیزي په منځ کي تبلیغاتي عناصر یو څه کم سوه، او د پستي ټکټانو دودیزه موضوعات لکه حیوانات. تاریخ، لرغون پیژندنه، کلتور نړیوالي پیښي او مناسبات سره یو ځای سوه. په ۱۹۸۸ ع کال کي پر یو پستي ټکټ باندي نهرو او د هند ملي بیرغ او په ۱۹۸۹ ع کال کي د "سپین ږیري یهودي" په نامه د پیکاسو یو انځور چاپ سو.

د افغانستان پستي ټکټانو ریکارډ یو ډېر مهم تاریخ دی چي د هغه په مرسته د افغانستان تاریخ او د دولت بشپړتیا (تکامل) او داچي دا هیواد او ملت څرنګه د نړۍ د خپلواکو ملتونو په لړۍ کي ځان ځای کي لوستلای سو. همدارنګه د تاریخي ودانیو جولیان (عکسونه) زیات ارزښت لري ځکه چي په تیرو جګړو کي زیات اثار ړنګ سوي یا خو بیخي له منځه تللي دي.

نن ورځ د افغانستان د خپلواکۍ اخستلو او وروسته کمیاب پستي ټکټان د راغونډلو وړ دي. په همدا وخت کي باید دا وګورو چي د فرانسې او برطانیې په شمول نړیوالو همکاریو د افغانستان د پستي ټکټانو په پرمختګ کي څومره مرسته کړې وه؟، چي افغانستان په دې وتوانیدی چي د شمیر او موضوعاتو له مخي د نوري نړۍ سره سیالي وکي.


**اخځونه:**

1- Stanley Gibbon (1990 "Stamps of the world," Vpl 1,
2- Stanley Gibbons "Central Asia," Vol 16,
3- Frank E Patterson III (1964) "Afghanistan, Its Twenthiet Century Postal Issues," Collectors Club, New York:
4- Masson and Jones (1904) "Postage Stamps of Aghanistan," Madres Philitelic Society, India.




# د اسلام په ټولنیز نظام کښې د کار، کسب او صنعت ارزښت

ملا سردارمحمد «شکیب»

د هرې ټولنې د احیاء ، پایښت او پرمختګ لپاره ګڼ شمیر لاملونه موجود دي . چې د همدې عواملو د شتوالي په رڼا کي ټولنه کېدای شي وکولای شي تر خپل ټاکلي مسیره پورې ځان ورسوي . هغه داچې د یوې ټولنې وګړې د قانون په چوکاټ کې پر یو محور راټول شي او نظم ونسق ولرې د بې امنیتي او بې ثباتي مخه یې ونیوله شي له اجتماعي بداخلاقیو څخه وژغورل شي ؛ او داسې نور ...

د دې ترڅنګ یو بل ستر عامل چې د ټولنې د ودې په برخه کښې ورته اړتیا شته ؛ هغه هم کار ، کسب او صنعت دی د ټولنې وګړې خپله ټولنه یوازې هغه وخت د آبادۍ او ترقۍ په لور بیولای شي چې خلک ځانونه په کار او کسب مصروف وساتي . په کومه ټولنه کې چې بیکاره لږ ، او کارکوونکي ډیر وي ؛ په هغې کښې د نورو په پرتله د ژوندانه ډیرې آسانتیاوې برابرې وي .

د اسلام مقدس دین چې ترټولو غوره دین دی او همیشه یې خپلو پیروانو ته د اسلامي ټولنې د جوړښت په هره برخه کښې په زړه پورې لارښوونې کړې ؛ ترڅو مسلمانان وکولای شي د اسلامي اساساتو لمخې خپله ټولنه پرمخ بوزي او د خپل ښه ژوند لپاره اسانتیاوې ولټوي اسلام چې کوم څیزونه ضرور ، حرام او یا مباح ګڼلي ؛ په هغو ټولو کښې د مسلمانانو فردي او ټولنیزې ګټې په نظر کښې نیولې شوې دي .

هغه څوك چې د اسلام د دې اصولو په دننه کې خپل ورځنی کار او کسب سرته رسوي ؛ نو نه یوازې داچې دا به د هغه لپاره دنیوي بلکه اخروي ګټې هم په لاس راوړي او د هغه د عبادتونو په لیکه کې به شمیرل کیږي .

د اسلام په دین کښې کار ، کسب او صنعت هغه څه دي چې نه یوازې مباح بلل شوي ؛ بلکه په دې ټینګار شوي چې مسلمانان کار او کسب پرینږدي ، ترڅو له همدې لارې اسلامي ټولنه پرمختګ وکړي او مسلمانان د خپل ځان او کورنۍ لپاره د ژوندانه اړتیاوې پوره کړای شي لوی څښتن «ج» په دې اړه فرمایي :

**« هوالذي جعل لکم الأرض ذلولاً فامشوا فيّ مناکبها وکلوا من رزقه »**

( الله تعالی (ج) ځمکه تیاره کړې او ستاسو په واك کي یې درکړې ؛ ترڅو په هر لوری په کې تګ او راتګ وکړئ او د هغه له نعمتونو او روزی څخه یې وخورئ ) (او ترینه کار واخلئ ) .

له دې مبارك ایت څخه څرګندیږي چې مسلمانانو ته پکار ده چې د الله تعالی د دې نعمتونو څخه چې ده ته یې توان او وس ورکړی او ځمکه او نور سامان آلات یې د هغه په واك کښې ورکړي ؛ کار واخلي او په دې وسیله د خپل ځان او ټولنې لپاره دنیوي او اخروي ګټې ترلاسه کړي .

مولانا سید مناظر احسن ګیلاني په خپل یو کتاب (اسلامي معاشیات) کي له (کنزالعمال) څخه نقل کوي او وایي « ان العبد اذا عمل عملاً یحب الله ویتقنه . »

کله چې بنده کوم عمل یا کرنه تر سره

کوی ؛ نو الله تعالی هغه خوښوي او په هغه کسبې اتقان پیدا کوی .

نوله دي څخه معلومه شوه چي کوم څوك کاسب او یا کارگر وی ؛ الله تعالی ته دیر خوښ او له هغه څخه راضي کیږي

همدا راز امام الفقها حضرت عبدالله ابن مسعود (رض) فرمایی :

**إني لااکره أن اری الرجل فارغا لا فی عمل الدنیا ولا فی الأخرة .**

زه نه خوښوم هغه سړی چي وزگار وی نه د دنیا په کار مصروف وی او نه د اخرت .

ښکاره خبره ده چي په اسلام کښې د کار او کسب ارزښت یاد شوي او کاسب او کاریگر د الله دوست گڼل شوي .

خو البته هغه کار او کسب چي په مشروع (روا) ډول ترسره کیږي .

دا ځکه چي اسلام خپلو پیروانو ته د دي اجازه نه ورکوی چي په هر ډول او له هری لاري وغواړي مال یا روزی لاس ته راوړی . بلکه اسلام د اسلامی ټولني د مصلحت په خاطر په روا او ناروا کي توپیر ږدی .

او دا توپیر د هغه عمومی اصل په رڼا کي دی چي وایی : هر هغه کسب چي په زور او جبر د یوه تن د پکار وړنی څخه نورو ته تاوان رسوی ؛ هغه ناروا دی . او هغه کسب چي د گټو راکړه ورکړه د دواړو په رضائیت او عدل سره وی ؛ دا روا دی .

دا اصل د نساء سورة په ( ۲۹ - ۳۰ ) ایتونو کي ذکر شوی دی .

**« یا أیهاالذین آمنوا لاتأکلوا اموالکم بالباطل إلا أن تکون تجارةً عن تراضٍ منکم و لاتقتلوا انفسکم إن الله کان بکم رحیماً و من یفعل ذلك عدواناً وظلماً فسوف نصلیه ناراً » .**

( ای مؤمنانو ! د یو بل مالونه په باطله مه خوری؛ مگر چي سوداگری یا تجارت وی چي د دواړو په غوښتنه او رضائیت وی . یو بل مه وژنی؛ همدا ده چي الله تعالی نسبت تاسو ته مهربانه دی . څوك چي دظلم او تیری له مخی څوك ووژنی هغه به په اور کي واچوو ) . په دي آیت کي د سوداگری مشروعیت په دوه شرطونه دی :
۱ - سوادگری باید د دواړو لوریو په خوښه وی . ۲ - باید د یو لوری گټه د بل رتاوان له کبله نه وی .

دا چي د دنیا کارونه په څو ډوله ویشل شوی لکه د ځمکی کرهڼه ، مالداری ، تجارت سوداگری صنعت او داسي نور ... دا ټول هغه کارونه دی چي نه یوازي عامو مسلمانانو بلکه د الله تعالی (ج) خاصو او رالیږل شویو بندگانو (انبیاء علیهم السلام) ترسره کری دی .

له ابن عباس (رض) څخه روایت دی : چي آدم (ع) کښت کوونکی یا بزگر ، نوح (ع) ترکاڼ ، داؤد (ع) زره (زغره) جوړوونکی ، ادریس (ع) خیاط (جامی گنډونکی) ، او موسی (ع) شپون وو .

هر هغه کسب چي ټولنه ورته اړتیا ولری ؛ د نیکو عملونو یوه برخه ده . که کوم څوك هغه په پوره اخلاص سرته ورسوی ؛ نو د اجر او ثواب مستحق گرځي . ځینی کسبونه داسی دی چي خلك هغه ته د حقارت په سترگو گوری او د ځان لپاره یې مناسب نه گڼی .

خو اسلام هغه ته ارزښت او احترام ورکړی دی . د مثال په ډول شپنی چي عادتاً خلك شپون ته په ټیټه سترگه گوری ، ولی پیغمبر (صلی الله علیه وسلم ) فرمایی :

**«مابعث الله نبیاً إلا رعی الغنم »**

( هیڅ داسی یو پیغمبر د الله له لوری نه دی راغلی چي رمه یې نه وی څرولی) پوښتنه ځینی وشوه تا هم یا رسول الله !؟ ویی فرمایل :

**« نعم کنت ارعاها علی قراریط لأهل مکة »**

( هو ! ما د مکي د خلکو پسونه د څو قراطه مزد په مقابل کي پووول (څرول) ) .

نو دا ضروری ده چي مسلمان کوم کار او کسب ولری ؛ په هغه کښې خوشحاله و اوسی . ځکه چي یو پیغمبر هم بي کاره او بي کسبه نه دی پاتی شوی .

په یو بل صحیح حدیث شریف کښې راځي : **« ما أکل أحد طعاماً قط خیرا من أن یاکل من عمل یده و أن نبی الله داؤد کان یأکل من عمل یده »**

( هیڅ څوك هیڅ وخت ترهغو خوړو حلال او پاك خواړه نشی خوړلای ؛ کوم چي د خپل مټ په زور یې په لاس راوړی وی . د الله پیغمبر داؤد (ع) دخپل کار او مټ له برکته ډوډی خوړله .

له همدي کبله دا لازمی ده چي کار ، کسب ، فن او صنعت ته جدی پاملرنه وشی . ترڅو د هغو ترسیوری لاندي مسلمان امت د غوره او ښه ژوند کولو لپاره لاره پیدا کړی .

د اسلامی نظام پښي تینگی شی او مسلمانان په فکری ، سیاسی او اقتصادی خپلوا کی او عزت کی ژوند تیر کړی .

# انار

ژباړه او لنډيز:
غلام حضرت

د معتبرو تاریخي او علمي اثارو له کتلو څخه داسې نتیجه تر لاسه سوې چې زموږ هیواد د جغرافیایي موقیعت له نظره د لویدځ او ختیځ تر منځ د تقاطع او د تمدونونو د پیوستون د مرکزي حلقي حیثیت لرلی او ډیر ځلي یې د علم او پوهي د سترو مرکزونو په درلودلو سره جهاني شهرت تر لاسه کړیدی.

له بلی خوا نه ذا هیواد لاله پخوا زمانو څخه را پدې خوا یو غرنی او زراعتي هیواد دی چې غرونه او مځکی یې په راز راز طبی بوټو، ونو او ګټورو زراعتي نباتاتو باندی پوښلې او سمسور دی.

پدې توګه ویلای شو چه زموږ په هیواد کی د سترو پوهانو موجودیت له یوی خوا او دطبی بوټو زیات والی له بلی خوا دا زمینه برابره کړی ده چي عامیانو طبابت او له نباتی بوټو څخه اغیزمنه ګټه اخیستنه ډیر عمومیت و مومی او موثری او مثبتی نتیجی ترینه لاس ته راشی څکه خو نه یوازی پخوا بلکه همدا اوس هم د هیواد په زیاتره سیمو کی د طبی بوټو څخه د ناروغیو په درمل کی کار اخیستل کیږي.

دلته غواړو د انارو د طبی ارزښت په برخه کی یو څه معلومات وړاندی شی، څکه انار له یوې خوا نه یوازی ښه میوه او اقتصادی ارزښت لری بلکه له بلي خوا ښه طبی ارزښت او په عامیانه طبابت کی ترینه ډیره ګټه هم اخیستل سوی او اخستل کیږی. څکه خو زموږ په هیواد کی د انارو ونې په ډیرو پراخو ساحو کی روزل شوی او روزل کیږی په تیره بیا د کندهار د سمسوري او ابادی سیمي انار ښه شهرت او لوړ نوم لري.

ددې هیواد په پخوانی عامیانه طبابت کی د انارو پوستکی ته (انار پوست) او د انار ګل ته (نافه انار) یا د انار غوتی ویل کیږی. چه تل د راز راز ناروغیو په مقابل کښې ترینه ګټه اخستل شویده او اوس اوس هم د موری، کلمو، صفرا او د وینو د ناروغیو په برخه کی ورڅخه کار اخستل کیږي.

موفق الدین ابو منصور په خپل کتاب " الابنیه عن حقایق الادویه" کی لیکی:

" د انارو ټول قسمونه د قابضیت خاصیت لري، غابښونه پخه وی. خو تروش انار ډیر قابض وی او غابښونه تباه کوی"... تروش او خواږه انار د اورلېښنو له پوستکی سره د معدی درد تسکینوی او د انارو دانی اسهال ته شفا ورکوي او تروش والی یې سینه او ستونی څیړوی او د انارو پوستکی د وجود حرارت کښینوي، معده دروي او صفرا په اصطلاح ماتوی.

همدغه راز قاسم بن یوسف اولفر هروی په خپل "ارشاد دالزراعه" نومی کتاب کی د انارو په برخه کی دارنګه مطالب وړاندی کړی چې ننی بیولوژیکی علوم یې هم په پورته توګه تاییدوی دی لیکی:

" هر څوک چې د تروشو انارو پوستکی میده کړی او په حمام کی یې پر خپل ځان باندی و موښنی نو ګزنده یا چیچونکی به د هغه له وجود څخه پاك سی، او که څوك د انارو پوستکی وجوشوی او د هغه اوبه وچښی نو د کډو دانې چینجی به ترې لری شی.

خوشال خان ختك چه د توري او قلم پیاوړی مبارز وو په طبابت کی یې هم پوره لاس درلود په یوه بیت کی د انارو په هکله داسي وایي:

**" خوږ او تریو انار واړه دارو دي**
**فواید د خواږه لا دي افزون تر"**

زموږ د ګران هیواد په زیاترو ولایتونو کې د انارپوست او د انار ګل څخه د یوه ډیر قوي قابض په توګه استفاده کیږي. په بدخشان کې د انارو تازه ګل د موری د تقویې له پاره او په ځینو نورو ولایاتونو کې بیا د انارو اوبه د وینو د کمبود د پوره کولو په منظور هم استعمالیږي.

لکه څنګه چې ابولفر هروي د انارو د پوست تاثیرات په غاښو باندې ښودلي، اوس اوس دا خبره په اثبات رسیدلې ده چې په انارو کې د تنن د مادې د موجودیت له کبله دی چه په غاښو باندې بده اغیزه کوي.

خو باید وویل شي چه تنن کم مقدار غاښونو ته څه زیان نه رسوي.

همدغه راز لکه څنګه چې په "ارشاد الزراعه" نومې کتاب کې لیدل شوي چې دانارو د پوستکي جوشانده د کډو دانې چینجي دفع کوي. نن ورځ کاملا په عملي توګه روښانه شوي چې د انارو په ونه کښې مختلف الکوئیدونه او نور شته چې ټول د کډو دانې چینجي باندې فعال اثر لري او هغه له منځه وړي.

له ټولو نه مهم دا چې په اوسني وخت کې د هیواد په ډیرو برخو کې د انارو اوبه د وینې د زیات والي له پاره استعمالیږي. پداسې حال کې چې په ۱۹۶۹ کال کې په علمي توګه دا خبره ثابته شوه چه د انارو اوبه او ځینې مرکبات یې په موثره توګه د وینې په زیاتوالي کې فعال رول لري.

همدغه ډول انار پوست د هیواد په عامیانه طبابت کې د زهریاتو په ضد هم استعمال شوی دي او اوس اوس علمي څیړونو دا خبره روښانه کړې ده چه د تنیك په نوم مرکبات چې له انارو څخه لاس ته راځي، په خپل ځان کې ډیر قوي ضد ذهروي مرکبات لري نو لدې کبله د عامیانه طبابت دغه مورد هم د علمي طبابت د تائید وړ بلل شوی.

لنډه دا چې لکه څنګه چې انار له صحي پلوه با ارزښته میوه ده او خوړل یې نه یوازې د میوې په توګه باارزښته دی، د روغتیا له پلوه هم د اهمیت وړ ګڼل کیږي.

او زموږ د ګران هیواد د اقتصادي پیاوړتیا سبب هم ګرځي څکه خو یې ډیروالی او خوړل زیات اهمیت او ارزښت لري.

همدا اوس هم زموږ د هیواد له ډیرو ولایتونو څخه چه په سر کې یې کندهار ولایت راځي، انار د یوې ښې میوې په توګه بهر ته هم صادریږي او هم په داخل کې ترینه ګټه ترینه اخستل کیږي. له انار څخه راز راز خوندور شربتونه هم جوړیږي چې زیاتره وخت د نورو خوړو سره خوړل کیږي. په هر صورت انار نه یواځې په اقتصادي لحاظ ډیر مهم دي بلکه د روغتیایي پلوه یې اهمیت له پخوا څخه څرګند شوی دی.

### اوږده او خسته کونکې ونیا!

یو پوه چې ډیره اوږده او خسته کونکې وینا به یې کوله یو وخت په یوه غونډه کې وینا کوله خلګ یو یو ولاړیدل یو تن تر اخره پورې ناست وو. له ناست تن څخه یې پوښتنه وکړه ښکاري چې زما وینا خوند درکوي څکه چې تر پایه ناست وې. هغه په خواب کې ورته وویل نه صاحب زما څادر ستا در پښو لاندې وو

### تپل!

یوه سړي ډاکټر ته تلیفون وکړ: هیله کوم چه ژر زموږ کور ته تشریف راوړې چه ورور مې ډیر ناروغ دی. ډاکټر پوښتنه وکړه څه ډول ناروغ دی؟ سړي ځواب ورکړ: ورور مې تپل څښلی دي په کور کې چارچاپیره منډې وهي. ډاکتر ځواب ورکړ مه وار خطا کیږه کله چه تپل خلا شي پخپله به و دریږي

یوه ټوکي سړي په یوه غونډه کې ټولو خلګو ته وویل ولاړ شئ؟ او هر څوك چې له خپلې ماندینې (ښځې) سره ستونځې لري لاس دې پورته کړي؟ ټولو لاسونه پورته کړل یواځې یو سړی بلکل ولاړ نشو ټوکي وویل شکر چې یو سړی مې د ماندینې څخه راضي ولیدی او بلکل ولاړ نشو هغه وویل: زه ماندینې داسې وهلی یم چې د ولاړې نه یم



روند سری و . الله د هغه په باب شپاړس ایتونه نازل کړي دي. دغه ایتونه ولوستل شول. او څو چې شپې او ورځې وې دغه ایتونه به لوستل کېږي. *(مفسرین)*

دا څوك دی چې د هغه په باب پاك رسول ته د اوه و اسمانونو د پاسه سخت او دردونکی عتاب شوی دی؟!

دا څوك دی چې د هغه په شان کې جبریل الامین د الله له لوري د پاك پیغمبر په زړه باندي وحې نازله کړې ده؟!

بیشکه هغه عبدالله بن ام مکتوم د رسول(ص) موذن دی.

عبدالله بن ام مکتوم مکي او قریشي دی او رسول (ص) سره د خپلوۍ اړیکه لري او هغه داسي چې هغه ام المومنین خدیجه بنت (رض) د ماما زوی دی.

مګر پلار یې قیس بن زائد دی او مور یې عاتکه بن عبدالله ده او په ام مکتوم سره یاده شوې ده ځکه عبدالله ور څخه ړوند زیږېدلی دی.



عبدالله بن ام مکتوم د نور (حضرت محمد (ع) د پیدا کیدو په وخت په مکه کې و الله د هغه سینه د ایمان دپاره پرانستله، او د اسلام له ړومبنیو منونکو څخه دی.

عبدالله بن ام مکتوم د مسلمانانو په لړ کې د تکلیف مرحله په مېړاني ثبات، استقامت او قرباني سره تېر کړه. د خپلو ملګرو په شان یې د قریشو د لاسه ډېر ضررونه ولیدل او دهغوی د ظلمونو او تکلیفونو ازمیښت یې په ثبات او استقامت سره تېر کړ، او هېڅ بې صبري ورڅخه ونه لیدله شوه، او نه دهغه په غیرت کې څه سستي او په ایمان کې یې څه کمزورتیا و لیدله شوه بلکې د الله د دین په باب د هغه تمسك دکتاب الله په باب د هغه علاقه د الله د شریعت په باب د هغه پوهه، او د رسول (ص) په باب دهغه توجه ډېره زیاته شوه.



الهي پیغمبر ته دهغه مخ اړول د عظیم الشان قران د یادولو حرص لرل یې تر دې درجې و چې تل به یې له هر وخت او فرصت څخه کار اخیست او هري پیښې ته به یې ژر اقدام کاوه بلکې د قران په یادولو کې به یې ډیر کوښښ کاوه، او هوسېده به چې د الهي پیغمبر څخه هم خپله او هم د بل برخه واخلي.

رسول الله (ص) د قریشو د مشرانو سره د مخامخ کېدلو کوښښ کاوه، او د هغوی د مسلمانیدلو یې ډیره هیله ښودله.

یوه ورځ د عتبه بن ربیعه او د هغه د ورور شیبه بن ربیعه، عمر بن هشام یعني ابوجهل، امیه بن خلف او ولید بن المغیره د سیف الله یعني د خالد د پلار سره مخامخ شو او هغو ته یې د اسلام د منلو او خبرو پیل وکړ او د هغو څخه یې د اسلام د منلو او دا چې د هغوی ضرر دهغه له ملګرو څخه بچ شي تمه کوله.



د قریشو د غه مشران د الهي پیغمبر سره ناست و چې په دغه وخت کې عبدالله بن ام مکتوم راغی او د الهي پیغمبر څخه یې د کتاب الله (قران) د ایت د ښودلو غوښتنه وکړه او ویې ویل:

((یا رسول الله ، علمني مما علمك الله
))

ای د الله رسوله! له هغه څه چې الله در ښودلي راوښیه. په دغه وخت کې رسول ور څخه مخ وګرځاوه، او خپل تندی یې تریو کړ او د قریشو ناستو کسانو ته یې مخ کړ او دا په دې منظور چې ګوندي هغوی اسلام ومني. او د هغوی اسلام منل د الله د دین په قوت او دهغه د دعوت په ملاتړي تمام شي څنګه چې رسول الله (ص) د هغوی له خبرو څخه خلاص شو او ویې غوښتل چې خپل کور ته ستون شي. په دغه وخت کې الله تعالی د هغه سترګې په بل حالت کړې او داسي شو چې ګوندي کوم شی د هغ سرته رسیدلی دی.

بیا الله تعالی پر هغه دغه ایتونه نازل کړل:

*(( عبس و تولی ان جاء ه الاعمی. وما یدریك لعله یزکی. او یذکر فتنفعه الذکری. اما من استغنی. فانت له تصدی. و ما علیك الا یزکی. و اما من جاءك یسعی. و هو یخشی. فانت عنه تلهی. کلا انها تذکرة. فمن شاء ذکره. فی صحف مکرمة. مرفوعة مطهرة. بایدی سفرة. کرام بررة. )).*

و چولی یې تریو کړ او مخ یې و گرځاوه. ددې له امله چې ړوند ور ته راغی. او ته څه شی پوه کړې چې هغه به (ستا په تعلیم له گناهونو څخه) پاك شي او یا به پند واخلي او پند به هغه ته گټه ورسوي. او هر هغه څوك چې ( د هدایت پروا نکوي) نو ته د هغه (د مسلمانیدو) قصد کوي او پرتا باندي چې هغه پاك نشي هیڅ الزام نشته . او هر څوك چې تاته (د خیر غوښتني دپاره) راشي. او حال دا چې هغه (له الله څخه) وېرېږي. نو ته له هغه مخ گرځوې ( او کفارو سره په خبرو مشغولیږې). بیا داسي مکوه بیشکه دا (سورت) پند دی. نو هغه څوك چې غواړي د هغه پند دي ومني (دغه قرانی ایتونه ) په عزتناکه پانو کي (لیکل شوی دی). (په قدر او عظمت کې) پورته دی ( او د شیطانانو له رسیدلو او د عیبونو څخه) پاك کړی شوی دی په لاسو د لیکونکو عزتمنو نیکو پرښتو.

جبریل الامین د عبدالله بن ام مکتوم په باب د پاك د رسول په زړه باندی شپاړس ایتونه نازل کړل او دغه ایتونه نازل شوي دی تر دي ورځې لوستل شوی دی او لاڅو چې د غه ځمکه او د هغې اوسیدونکی الله تعالی ته په میراث پاتي کیږي هغه به ولوستل شي.



رسول الله (ص) له همدې ورځې څخه د عبدالله بن ام مکتوم چې به ورته راغی قدر کاوه. او په مجلس کی به یې خپلې خواته نژدې کښیناوه. او ور څخه به یې د حال پوښتنه کوله او حاجت به یې تر سره کاوه.

دا د تعجب ځای نه دی. ایا دی هماغه نه دی چې د اوه و اسمانونو د پاسه دده په باب د سخت عتاب سره مخامخ شوی دی؟!



کله چي قریش د پیغمبر او د مومومنانو په باب یو لاس شول او دغه د حقي لارې خاوندان یې د سختو تکلیفونو سره مخامخ کړل نو الله تعالی خپلو دغو مومنو بندگانو ته د هجرت اجازه ورکړه. او بیا عبدالله بن ام مکتوم لومړی شخص و چي خپل هیواد یې پرېښود . او دخپل دین سره ئې د تېښتي لاره ونیوله او د مصعب بن عمیر سره دپیغمبر د ملگرو لومړنی دوه کسان و چي مدیني ته ورسیدل. او بیا دغه دواړه یثرب ته د رسیدو سره سم د خلکو سره په تماسونو کې شول، او هغوی ته د قران او د دین د چارو په ښودلو شول.

بیا کله چي رسول الله (ص) مدینې ته هجرت وکړ نو عبدالله بن ام مکتوم او بلال بن رباح یې د مسلمانانو دپاره دوه موذنان وټاکل څو دغه دواړه پنځه وخته د توحید د کلمي اعلان وکړي او خلك خورا ښه عمل ته را و بولي. او د نجات په لو ر یې وهڅوي.

هماغه و چې بلال به اذان کاوه. او ابن ام مکتوم به د لمانځه اقامت ویل او یابه کله ابن ام مکتوم اذان وکړ او بلال به اقامت وویل.

بیا د رمضان په مبارکه میاشت کي بلال او ابن ام مکتوم د یوه بل شان خاوندان و او هغه دا چي مسلمانانو به د یوه په اذان سره پیشنمی کاوه او د بل په اذان سره به یې له خوراك او څښاك او نورو څخه لاسونه ونیول. یعنی بلال به پیشنمی ته د ویښیدلو او ابن مکتوم په د سهار اذان وکړ.

حضرت پیغمبر (ع) د ابن ام مکتوم زیات قدر کاوه تر دې چي هغه یې څو ځلي د خپل غیاب په وخت کې پر مدینه باندي د امیر په حیث وگماره او یو ځل یې هماغه و چې الهی پیغمبر د مسلمانانو سره د مکې د فتحي دپاره وتلی و.

الله تعالی د مکې د فتحي په پای کي پر خپل پیغمبر باندي قراني ایتونه نازل کړل او په هغو سره یې د مجاهدینو لوړ شان وښود . او پر ناستو کسانو یې د هغوی فضیلت یاد کړ څو مجاهدین په خوشحالی سره جهاد وکړي او ناست له ناستي څخه لاس واخلي.

قرانی ایتونه پر عبدالله بن ام مکتوم اغیزه وکړه او په هغه باندي د جهاد له فضیلت څخه محرومیدل سخت تمام شو او ویې ویل:

*ای د الله رسوله! که ما جهاد کولای شوای نوما به کړای وای.*

بیا یې د زړه په وېرې او عاجزی سره غوښتنه وکړه څو د هغه او د هغه د سیالانو په باب چي د معذرتونو له امله

له جهاد څخه پاتې دي قران نازل شي او داسي دعا يې وکړه:

*(( الهم انزل عذری ... الهم انزل عذری))*

يا الله! زما د عذر په باب څه نازل کړه. يا الله! زما د غذر په باب څه نازل کړه.

بيا هماغه وچي الله د هغه د عا قبوله کړه او هيله يې تر سره شوه.



د رسول الله (ص) کاتب (زيد بن ثابت) وايي

زه د رسول الله ن(ص) تر څنگه وم چي په هغه باندي د ارامتيا حالت راغی. او ورون يې زما پر ورون پريوت. په دغه وخت کي ما د رسول الله (ص) څخه بل دروند شی نه و ليدلی بيا د هغه د وحې سخت حال په عادي ډول شو او ويې ويل.

*اکتب يا زيد.*

*ای زيده وليکه.*

ما وليکل:

*(( لا يستوی القاعدون من المومنين والمجاهدون فی سبيل الله...))*

بيا ابن ام مکتوم پاسيد او ويې ويل: ای د الله رسوله! هغه څوك چي جهاد نشي کولای څنگه دی؟

دهغه خبره لاتمامه نه وه چي پر رسول الله (ص) ارام حالت راغی. او ورون يې زما پر ورون پرېوت او د لومړي خل په شان يې دروندوالی حس کړ. بيا هغه پخپل عادی حالت شو او ويې ويل:

*اقرا ما کتبته.*

هغه څه چي تا ليکلي هغه ولوله.

ما ولوست:

*((لايستوی القاعدون من المومنين...))*

نو ويې ويل اکتب.

*((غير اولی الضرر))*

دغه استثناء چي د ابن ام مکتوم هيله وه نازله شوه.

سره ددې چي الله تعالی عبدالله بن ام مکتوم او دهغه په شان نور کسان يې له جهاد څخه معاف و بيا هم د هغه نفس دا نه منله چي د ناستو کسانو سره کښيني نو هماغه و چي د الله تعالی په لاره کي د جهاد عزم وکړ

دا ځکه چي لوی شخصيتونه بي د لوی کارونو څخه په بل څه نه راضي کيږي.

نو ابن ام مکتوم له همدغي ورځي څخه حرص درلود چي هيڅ کومه غزا ور څخه پاتي نشي او د خپل ځان لپاره يې د جنگ په ساحو کي خپله وظيفه پخپله وټاکله او ويې ويل:

*(( اقيموني بين الصفين وحملوني اللواء احمله لکم و احفظه • • • فانا اعمى لا استطيع الفرار))*

ما دجنگ د دواړو صفونو تر منځ و دروی، او بيرغ راکړی څو هغه ونيسم او ويې ساتم ځکه زه ړوند يم او تيښته نشم کولای.



د هجرت په لسم کال عمر بن الخطاب و غوښتل چي د فارسيانو سره فيصله کونکی جنگ وکړي څو د هغوی دولت نسکور او سلطنت يې له منځه لاړ شي. او د مسلمانانو د لښکرو پر مخ لاره خلاصه کړي نو خپلو واليانو او حکيمانو ته يې وليکل

*(( لا تدعوا احداله سلاح او فرس او نجله او رای الا وجهتموه الی والعجل العجل))*

هر هغه څوك چي وسله. يا آس. يا کومك او يا نظر لري هغه ماته راوليږی او په دغه کار کي بيړه وکړی، بيړه وکړی

د فاروق په بلغ سره له هري خوا څخه مديني ته د مسلمانانو ډلي راغللې او په دغو ډلو کي ړوند عبدالله بن ام مکتوم هم و

فاروق د مسمانانو پر لوی لښکر سعد بن ابی وقاص د مشر په توگه وټاکه او هغه ته يې وصيت وکړ او بيا يې ور سره وداع وکړه

کله چي لښکر قادسيي ته ورسيد، په دغه وخت عبدالله بن ام مکتوم چي ځغرې يي پر ځان وې او خپل ځان يې سمبال کړی و د بيرغ د اخيستلو او د هغه د ساتلو لپاره يې او يا دا چي شهيد شي خپل چمتوالی وښود



دوې ډلي چي په دريو سختو او ترخو ورځو کي سره مخامخ شولې او دواړه ډلي، سره داسي وجنگېدلې چي د هغو د جنگ مثال د فتوحاتو په تاريخ کي نه دي ليدل شوي تر دي چي په دريمه ورځ د مسلمانانو لوی بری وليدل شو او د دولتونو لوی دولت دوی ته تسليم شو، او د تختونو پخوانی تخت نسکور او له منځه ولاړ او د وثنيت (بت پرستی) په ځمکه کي د توحيد بيرغ هسك او په رپيدلو شو.

ددغه ښکاره لوی بري قيمت په سونو شهيدان وه، او د دغو شهيدانو له ډلي څخه يو تن عبدالله بن ام مکتوم و او بيا هغه په داسي حال کي چي د جنگ په ميدان کي په وينو پروت و او د اسلام بيرغ د هغه په غيږ کي وو.

# سفر نامه

عبدالله ګل ریان

# ...هلمند ته ځو

پخوا مو پتیلې وه چې د هلمند ولایت په تیره بیا د لښکری ښار (لښکر ګاه) لیدنه وکړو زموږ تلل د اطلاعات او فرهنګ د ریاست په چوکاټ کې وو، تر څو تاریخي ابدات. اثار او د هغه ولایت خپروني وګورو.

په ملګرو کې یو هم په داسې پوړکی نه وو چې د تللو وسیله ولري. له همدې امله او څه نوري ستونزي ورسره وې چې ځنډ راته پیښ شو خو نه پوهیږم د چا په زاری او خولی ته په کونج ورکولو د راډیو امیر جهانګیروال صاحب د یوه موټر ایثار وکړ. موټر مو د محمد اکبر په ډرایوری روان کړ او موږ هم پنځه کسه وو (معلم محمدعباس د اطلاعاتو او کلتور ریاست اداري مدیر. حاجي عبدالقدیر د شریعت غږ راډیو اداري مدیر. داکتر نورالله زمریانی دکندهار پوهنتون د طب دپوهنځی رئس. عبدالقیوم مینه وال دشعر او ادب مدیر او د دې کرښو لیکونکی)

زموږ د تګ په ورځ (۱۳۷۷.۱۲.۱۵ هجري لمریز) د معمول په خلاف چې اسمان شین او مځکه خړه وي. اسمان خړ او مځکه زرغونه وه دکندهار د ښار تر مصنوعي ښکلا چې تیر شوو د ځمکي او اسمان توپیر نور هم څرګند وو د باران واړه څاڅکي داسې را لویدل ګواکي د الهي رحمت د بهیر زیری راکوي په همدې وخت کې د موټر ټایپ په خواږه غږ ترانه غږوله او الفاظ یې دا وو.

ګل وایي ... ګلشن وایي لااله الاالله

رښتیا هم د اوږده ژمي له تیریدلو. د نوي پسرلي نری وږمه. او د ځمکي زرغون رنګ په انساني طبیعت خوندوره اغیزه لري. خو که سړی د شاعرانه تخیل له لوړي څخه د فکر ژوري ته کښته شي. د ښینوالي هره پاڼه د یوه حکیم او قدیر ذات په علم او حکمت دلالت کوي. هره پاڼه د همدې فکر په څپو کې د خدای د پیژندګلوی یوه لاره ده

دهلمند وادی: د میوند د ولسوالی ترمرکز (کشک نخود) چې تیرشوو کښې لاس ته د هلمند د ولایت د مرکز په لور سړك کښته شوی دی او له همدې ځای څخه د هلمند وادی پیل کیږي.

لوستونکي پوهیږي چې په افغانستان کې د اوبو او سیندونو په لحاظ دري حوزې موجودي دي.

۱- د امو حوزه: چه له مرکزي غرونو څخه یې اوبه پیل کیږي او منځنی اسیا ته ځي په دې حوزه کي اوږد او ستر سیند د امو سیند دی.

۲- د اندوس حوزه: دا هغه سیمه ده چې اوبه یې د افغانستان د ختیزو برخو له غرونو څخه پیل او د اټك د سیند دریاب ته رسیږي.

۳- د هلمند حوزه: په دې حوزه کې د هلمند. ارغنداب. خاشرود. فراه رود او هریرود سیندونه بهیږي او ټول د هیواد په جنوب لویدیځه برخه کې د سیستان په جهیل کې توییږي.

په دې حوزه کې د هلمند دریاب تر ټولو اوږد او ستر دی، چې د افغانستان له مرکزي غرونو را پیل کیږي، د هزاره جاتو په سیمه راکښته او د ګرشك ترڅنګ بهیږي، د ګرشك په برخه کې یې سرعت کمیږی خو پراخیږی هلمند د بست د پخوانی ښار ښی لورته بهیږي او بیا نژدې دوه سوه کیلو متره لاړ وهي خو د سیستان جهیل ته ورسیږي.

د هلمند دریاب په اوستا کې دتومانت (د زیاتو بندونو لرونکی) په نوم یاد شوی خو مورخینو د اتیا مندرو او اتیا مندوس په نوم یاد کړی دی.

د هلمند پراخه وادی په تاریخ کې د سیستان، درنګانیه، زرنګا، زرنګ، زاول او نیم روز په نوم یاده شوې ده په اوستا کې دا سیمه وزرایه او په زړه فارسي کې دریایه بلله شوې ده.

تاریخي زرنګاو زرنګ بیا په زرنج اوښتی دي. دې وادی ته په ۱۲۸ هجري قمري کال د ساك قبایل راغلل چي په هغه وخت کې د سیستان او سجستان په نوم ونومول شوه.

**د هلمند د وادی د ابولو پروژه:** ددې پروژې کار په ۱۳۱۶ هجري ش کال پیل شو خو په ۱۳۲۵ کال یې د کار قرارداد له امریکایانو سره وشو او پکښې د کجکي بند، د بغرا سیند او کانال، د شمالان او مارجې کانالونه شامل وو.

**د کجکي بند:** ددې بند کار په ۱۳۳۱ هجري شمسي کال بشپړ شو. ددې بند اوږوالی ۲۷۳ متره، پسور ۴۰۰ متره او لوړوالی ۹۴ متره دی. کوم د



اوبو ډند چي یې جوړ کړی دی اوږدوالی یې ۵۸ کیلو متره او منځنی سوریي ۲ کیلو متره دی.

په دې وادی کې ټوله څلورسوه زره هکتاره ځمکه د کرهنې لپاره مساعده کیدلای شي. د کجکي بند یو سل او شل زره هکتاره ځمکه خړوبولای شي خو اوس څلوردیرش زره هکتاره ځمکه د ګټې اخستلو وړ ګرځیدلې ده.

دکجکي بند د کندهار ښار او لښکرګاه ته برېښنا هم برابروي.

**د لښکرګاه ښار:** په همدې خړه هوا کې دباران تر څاڅکو لاندې او په چکړنه ځمکه باندې نژدې دوولس بجې د لښکرګاه ښار ته ورسیدو. محمداکبر چې ځان یلد ګاڼه یوه کورته یې موټر ودراوو او ویې ویل دا داطلاعات او کلتور

دفتر دی. پخپله ورکښته شو پرته له دې چې په وره د اجازې ډبول وکړي کورته ننوت. په منډه راووت ویل یې دا نـدی. ورپسې ماشومان راغلل ماورتـه وویـل: اکبره یاره لکـه چې دکوټې منـځ تـه ورغلـې؟ ده پرتـه لـه خنده وویـل خیر دی زه لاتـر اوسـه نابالغ یم ما وویل: ملګرو تر اوسه اکبرپاچا بللې اوس بـه دي شهزاده اکبر بولي...

موږ همدا خبري او خندا سره ګډوله چې د اطلاعاتو او کلتور رئس مولوی حبیب الله موټر ودراوو. ترپوښتني او ګروېږني وروسته دی تر مخه او موږ ورپسې د هغه دفتر تـه لاړو. د دفتر نور ملګري هم راغلل. غرمه مو څکه په خوشحالی تیره کړه چې یو خو همدا محترم رئس او ملګري یې د ښې راشه درشه خاوندان وو او بل دا چې ټول اشنا او بلد وو. دې ته ضرورت نه وو چې د نابلدی د تندیو غوټې مو هواري کړي وای.

د لښکرګاه ښار د هلمند د ولایت مرکز دی او دا ښار د بست د تاریخي ښار په ۹ کیلومتری کې د سلطان محمود غزنوي پـه وخـت کـې د یـوه پوځي مرکز په توګه جوړ شوی چې وروسته د لشکرګاه په نوم و نومول شو او نن په یو نوې نقشه جوړ شوی ښار دی چې د برېښنا شته والی یې رنګ او رونق نور هم برابر کړی دی

د هلمند ولایت: د نهرسراج (ګرشک)، موسی کلا، نوزاد، سنګین، ګرمسیر(هزار جفت)، نادعلي، د بارکزو ناوه (خلج)، باغران، دیشو، ساربان کلا، کجکی او د واشیر په نومونو ولسوالی او اداري مرکزونه لري

د بست ښار: د همدې ورځې په ماسپښین د اطلاعاتو او کلتور د رئس او ماموریتو او د هلمند ولایت د امربالمعروف او نهی عن المنکر د رئس په ملګرتیا د بست کلا ته لاړو. د امربالمعروف د رئس (مولوی‌عبدالرحمن) ملګرتیا ددې لپاره نه وه چې زموږ کړه وړه تعقیب کړي بلکې د خپل ماما حاجي عبدالقدیر په احترام راسره تللی وو د هلمند د استخباراتو رئس هم د امربالمعروف د رئس سره ملګری وو خو دا چې رښتیا هم د استخباراتو دمسلکي شخص په توګه غلی سړی و د پوښتني او بلدتیا ستونزه مو هم سره و نه ګالل کیدلای شي زما ملګري اوس هم په دې نه وي پوهیدلی چې داستخباراتو رئس زموږ ملګری و...

د هلمند د سیند کیڼې خواته چیري چې دهلمنداو ارغنداب سیندونه سره یو ځای کیږي د بست د ښار کنډوالې پرتې دي. دا کنډوالې د څو کلاګانو یوه ټولګه ده چې د هلمند او ارغنداب په غاړه تر ډیره ځایه ښکاره دی. دې ښار په شپږمه میلادي پیړۍ کې نوم درلود او د مسلمانانو د راتلو په وخت کې دکابلشاهانو په وړاندې دا د هغوی غښتلی مرکز وو. څه موده ددې ښار شهرت کم شو خو د غزنویانو په وخت کې یې بیا نوم ووت او په هغه وخت کې د هلمند د سیند بندونه تړل شوي ووچې ښه بڼونه او ښکارځایونه یې درلودل دا ښار د خراسان، بلوچستان او هند ترمنځ یو مهم تجارتي مرکز او د سیستان له مهمو ښارونو څخه وو. بست ډیر پوهان او تاریخي اشخاص هم درلودل.

د بست کلا: د بست د ښار په کنډوالو کې یوه کلا اوس هم نوموتې او په لیدلو ارزي. هغه اوس داسي ښکاري ګواکي دیوې غونډۍ په سر یوه ژوره ځاه وي خو جوړښت یې داسي دی چې دیوه برج په څیر ودان شوی او د سرونو او دیوالونو را لویدلو یې ښه غونډۍ ته اړولې ده.

د همدې کلا په مخ کې یو طاق (شست) تړل شوی دی. داسي اټکل کیږي چې یو نمایشي جوړښت وي خو ځلي ترمیم شوی او د خوندي پاتـه کیدلـو لپاره یې تر لاندې او پاندې زیاتوالی هم راغلی دی. تر دې ور تیر همدا کلا پیل کیږي او څوك داسي ورخیژي لکه په یوه غونډۍ چې هسکیږي په غونډۍ دپاسه څو نور هم داسي دیوالونه او سرونه ښکاري چې ترلاندي همداسي جوړښتونه وي. خو مهمه پکښي هغه ودانۍ ده چې لري یې خلك

ځاه ګڼي. دا جوړښت درې خولې لري یوه خوله یې ګرده ودانه ده چې په اټکل سره ویل کیږي چې د قطر اوږدوالی به یې (۵_۶متره) وي دا له سره تر پایه یو ډول ودانه شوې ده. داسي چې د سر او پای قطرونه یې سره برابر دي له سره تر پایه له اړخونو څخه اوه خولې ورته را خلاصی دي خو په اصل کي ۹ منزله معلومیږي. هر منزل ځان ته خوني، بربندی لاري لري او زموږ د یوه ملګري (معلم محمد عباس) په شمیرنه (۱۱۵) زیني ورکښته شوي دي.

ددې تر څنګ یوه بله خوله کښته تللې ده چې جوړښت یې څلور کونجه او خواو شا برنډې روښانه کوي ورسره د عادي ځاه په کچ خو څلورکونجه بله ځاه هم کښته شوې ده. اټکل کیدلای شي چې دا به د هوا د وتلو او ورتللو لپاره وي. په پای کي داسي ښکاره کیدله چې خښتي او ډبري ور توی شوي او را ډکه شوې ده، د مسئولینو په وینا نږدې (۲۵ ۳۰) متره برخه یې تر وروستني پاکولو او ترمیم را وروسته بیا ډکه شوې ده.

د دې کلا په لړ لري څنګ کی بل ځای هم دیوالونه معلومیږي. کیدلای شي چې تر لاندي همداسي ګنبدي وي او څه نور هم ځنډي ته خو بشپړ دیوالونه دي او د باران د اوبو د توئیدو لاره لا دا هم ښیي چې تر پایه پوري به ځاه ته ورته جوړښت وي. ویل کیږي همدا جوړښت په کښتني برخه کي د هلمند سیند ته چې ورڅرمه ده لاره لري او لرې ځایونو ته هم امنیتي لاري ور څخه تللي وي.

مازدیګر مهال له کلا څخه راکښته او څه وړاندي مو د سیند په اوبو اودسونه وکړل. چالاوویل څومره انسانان به دلته کښنستلي او ولاړ شوي وي خو یو نشته او دا سیند لا بهیږي. ما وویل: سیند بهیږي خو پایښت یې تر انسانانو هم کم دي. انسانانو خو به لږتر لږه څو ځلي د سیند په غاړه ناسته ولاړه کړې وي، خو دا اوبه چې یو ځل لاړې بیا نه راغبرګیږي...

تر لمانځه وروسته یوه زیارت ته لاړو چې تاریخ یې (۱۰۰_۱۵۰) هجری سنی ته شاته ښکاره کیده د خښتو ګنبده وربانډی ولاړه وه د خښتو جوړښت یې هم لرغونتیا څرګنده وه، د ګنبدی سر لوڅ وو او څه افسانی هم پسی تړل شوی وی...

له ډاره یې ځانګو زنګوله: ماښام لمونځ مو د لښکرګاه د ښاریوه مسجد ته راورساوه خو د جماعت لمونځ را څخه تیر وو. د مسجد ملا کلیوالو ته په یوه معقوله خو تنده لهجه تبلیغ کاوو داسي معلومیده چې دهمدې محلي اړوندو کاروباریانو کشران لمانځه ته نه پریښودل. په محله کي د ځینو کورنیو د کشرانو له کړو وړو په ښکاره یادونه وشوه کلیوال یې نوم په نوم یادول او ملامتول او په پای کي یې وویل: نور مي زغم پای ته رسیدلی یا سم شی یا لاړ شی او یا زه ځان بندي کوم...

وروسته پوه شوم چي همدا ملاامام د مخابراتو د ریاست مسئول وو. کاشکي ټول ملا امامان رئسان وای چي کلیوالو ته یې له پامه او لوړه دریځه غوڅه خبره کولای.

د ملا امام تر تبلیغ وروسته بیا هم د اطلاعات او کلتور ریاست ته لاړو. ډوډی مو وخوړه مسئولین یې هم په دفتر کي پاتي وو. د شپې تر ناوخته مو په لري او نژدې مسایلو خبري کولې. چا لاوویل چې دلته یو سړی دی چې عمر یې دووسوکلونو ته رسیږي او وایې د شیرعلیخان د پاچهی په وخت کي ځوان وم او د میوند په جګړه کي مي ګډون کړی. تیره اونی ایمل پسرلي ورسره د بي بي سي راډیو لپاره مرکه هم وکړه...

د شپې په دې ناسته کي دموسکا څرکونه هم وو او هغه له خبرو پیداکیدل یو څرك دا چي مینه وال وویل: څوك چي کورونو ته ځي هغوی دي لاړ شي کنه بیا به وربانډي ناوخته وي او بهانه به هم نه لري وایې: یو سړی به تل کور ته ناوخته ورتلو. یوه شپه څه زیات ناوخته شوی وو. غلی کورته ورغی د

خانګو تر څنګ کښیناست او هغه یې خنګوله. څو شیبې وروسته یې میرمن را ویښه شوه او په منت سره یې ورته وویل: تراوسه دې څه کول؟

سړي خوارکي چې ویریده په لړیدلي غږ خو امرانه اکټ یې ورته وویل: ته بیده شې د ماشوم پروا نلرې. ژړل یې او ما تراوسه د هغه ځانګو څنګوله...

میرمن یې ورته وویل: بس کړه ماشوم له ما سره کښته بیده دی.

تر خبري او موسکا وروسته. ما مینه وال ته وویل: چې تاسو خو هم د پنجشنبې په ورځ ناوخته لاړې ډیر ناوخته خو ونه رسیدلې (دنومړي کورله کندهار ښار څخه د یوه ساعت په مزل لیري دی). نومړي پرته له دې چې خپلي ټوکي ته یې پام شي ویې ویل:ونه ناوخته وو.

ماورته وویل: د ځانګو خبره خو به دې خپله نه وي؟ نومړي ددې خبري دفاع په جدیت سره ونکړه او ځکه هم ورباندي وتپله شوه.

**کتابتون:** د سهار تر لمانځه وروسته مو د اطلاعات او کلتور د ریاست اړوند کتابتون وکوت. په کتابتون کي ډول ډول کتابونه او کلکسینونه ایښدول شوي وو. د کتابونو شمیر به دوو زرو جلدونو ته رسیده ریښتیا هم په داسي وخت او داسي ځای کي داسي کتابتون دکمال خبره وه. د کتابتون کتابونه په دومره پیښو کي پخواني پاته نه وو بلکي د اطلاعات او کلتور د مامورینو په هاند او هڅه په کابل کي له دې خوا او هغي خوا پیدا شوي وو.

**مطبعه:** د چایو تر څښلو وروسته د اطلاعات اوکلتور اړوند مطبعی ته لاړو. مسئولین یې حاضر وو په مطبعه کي د حروف چیني نظام چلیده. څلورو تنو حروف چیني کوله او د ایډل برګ جرمني ماشین یې درلود. دا ماشین نژدې څلویښت کاله همدلته پاته شوی وو چي خورا ښه ساتل شوی او اوس یې هم کار کاوو. مطبعی ته له پخوا څخه زیات کاغذ هم پاته وو چي د هلمند د اخبار لپاره ډیره موده بس دی د هلمند داخبار د چاپ کار هم همدا مطبعه کوی.

**راډیو تلویزون:** د مطبعی د دفتر په انګړ کي یوه د روسي مخابري رادیو دستګاه هم ولاړه وه خو په خپله یې خپروني کولای نشوای بلکي د ستیشن غږ یې غښتلی کولای شوای او هم په ښارکی د لاودسپیکرونو په واسطه یې د خپرونو ځواك درلود. خو د پرزو کمښت یې دا ځواك ور کم کړی وو. په خوا کي یې د لوی راډیو د انتنونو پایې هم پرتې وې.

په یوه خونه کي د تلویزون د دستګاه.څه برخي هم وې او دیوه تن مسئول په وینا په سلګونو تلویزوني کسیټونه هم ورسره وو.

**فابریکه:** د مطبعی تر کتلو وروسته د اطلاعات اوکلتور د رئیس او مسئولینو په ګډون د غوړیو فابریکې ته لاړو. هلته د فني کسانو له لوري راته لارښووني کیدلې.

دا فابریکه په **۱۳۴۳** هـ ش کال کي جوړه شوې ده. د یوه مسئول په وینا دې فابریکې د هیواد د پنځلسو ولایتونو د غوړیو اړتیا پوره کوله او په همدې پروګرام جوړه شوې وه. د نورو پنځلسو ولایتونولپاره بیا د کندوز سپین زر شرکت جوړ شوی وو.

دا فابریکه اوس فعاله ده. کارکوي خو خام مواد چي پخته ده ورته زیات نه رسیږي د یوه فني شخص په وینا یي اصل علت دا دی چي د فابریکې د تصدی له لوري خلك نه هڅول کیږي هغه داسي چي. اصلاح شوی تخم. کود او نور تسهیلات نشي برابریدلای ان کله لا د راوړل شوې پختې پیسې په خپل وخت لاسته نه ورځي ځکه دا تصدی څه اضافي پانګه نلري او غوړي او پخته په خپل وخت نه خرڅیږي نو د هغوی پیسې څنډیږي. د پختې کمښت بل علت دکوکنارو کښت دی خو هغه وویل: دا کیدلای شي زر بند شي ځکه کوکنار ډیر کړاو غواړي که د پختې کرلو ته څه پاملرنه وشي او خلك ډاډه شي هغوی به دا کار په خپله پریږدي



دا فابریکه روغه رمته پاته وه یوازي په یوه تعمیر کي درز ښکاره کیده هغه کیدلای شي د تعمیر د جوړښت کمزوري پیدا کړې وي.

د فابریکې په هکله پوره معلومات د پلان په مدیریت کي وو. خو موږ وخت کم درلود، هغه مو ونه کتل کومه ورځ چي موږ ورغلو فابریکه هم بنده وه. هغه څه چي زموږ دماغ ته زموږ د سترګو له لاري او یا د فني کسانو د تشریح په وخت کي د غوږ له لاري رسیدلي دي هغه به په لنډ ډول ولیکم. دا فابریکه دپختې د پاکولو او حلاجي کولو او د غوړیو د جوړولو برخي لري.

کله چي پنبه او دانې سره بیلي شي، پنبه حلاجي ته ځي او دانې یې له بلي لاري د میده کیدلو ماشینونو ته ځي. د میده کولو ماشینونه هغه میده کوي، وروسته غلبیلیږي بټوکي یوه لور ته او مغزبل لور ته ځي. له مغز سره څه کیمیاوي مواد لکه کاستیک سودا او کاربن ګډیږي او بیا د پخیدلو ځای ته ځي د پخیدلو په ځای کي درې پوړه جوړوي اوبه، غوړي او صابوني مواد دا بیلوالی د موادو د کثافت (مخصوص وزن) په واسطه کیږي داسي چي د اوبو کثافت یو دي هغه کښته او د نورو موادو کثافت ۰.۹ او۰.۸ دی هغوی پورته دریږي.

وروسته غوړي نورو ماشینونو ته ځي او هلته په ۱۸۰ درجو تودوخه کي جوش اوبه وربانديږي ورځي چي که څه اضافي مواد پاته وي هغه له ځان سره یوسي او غوړي نور هم صاف کړي. دا کارونه ټول په اصولي او تخنیکي ډول سره کیږي چي کمال او کار یې په لیدلو ښکاره کیدلای شي.

غواوي وساتی: کله چي موږ همدا برخي کتلې، د هغوی لیدل او د تشریح اوریدل رښتیا هم د یوه ستر او ستونزمن کار بیلګي وې. په همدې وخت کي مولوی حبیب الله د فابریکې فني مسئول ته د ټوکي او موسکا په بدرګه وویل: دا دومره تکلیف کوي خو ډیري غواوي وساتی د غوړو اړتیا به پوره شي.

دا باید وویل شي چي همدې فابریکې پخوا غواوي هم ساتلې. خو د غوړیو لپاره نه، بلکي کارګرو ته د شیدو لپاره. په هر حال د پنبه دانې هغه

برخه چې پاته کېږي هغه کونجاره جوړوي او يوه برخه چې تر کونجارې را وروسته بېلېږي، هغه نورو ماشينانو ته ځي او هلته ځه کيمياوي مواد ور ګډيږي او صابون ور څخه جوړيږي. صابون جوړول هم قالبونه لري چې هغه ويلي او ايشېدلي مواد په قالبونو کې کلکيږي.

د فابريکې، کونجاره، غوړي او پخته بازار ته وړاندې شوي خو صابون يې لا بازاري بڼه نه ده خپله کړې بلکې لاتر اوسه د کارګرو او مامورينو اړتيا پوره کوي.

په دې فابريکه کې اوس نژدې دوه سوه تنه کار کوي.

له پنبه دانې څخه چې کوم پوستکي (پټ) پاته کېږي، هغه په نورو ماشينانو کې سوځي بخار جوړوي او له بخار څخه يې د غوړيو او صابون د جوړولو په وخت کې د تودوخې کار اخلي. او که زيات شي په بازار کې خرڅيږي او خلک په تودوخه کې ورڅخه ګټه اخلي.

که کله برق اود پټکو تودوخه نه وي بيا ورته فابريکه جنريتورونه لري خو د هغوی له وينا د جنريتور کارګران تماميږي.

د فابريکې د ستګاه تيوله فعاله وه، د حلاجي يو ماشين چې دا څو کاله وران وو هم اوس ترميم شوی او په کار لويدلی وو.

دوولس بجې له فابريکې څخه ووتلو.

**حجاري او نجاري:** د غوړيو د فابريکې تر کتلو وروسته د حجاري او نجاري دستګاه ته ورغلو امير يې (محمد اسمعيل شريعت يار) چې شاعر هم وو حاضر اولومړۍ دفتر ته لاړو په دفتر کې مې لومړۍ سترګې په هغه ميز ولګيدلې. کوم چې له نه تراشل شوی لرګي څخه جوړ شوی او په طبيعي توګه يې د ونې د تنې بڼه درلوده، د ميز شاته توږل شوی. په خط ليکل شوی د رخامو د ډبرې لوحې ليدل کيدې.

يوه لوحه خورا ښکلې خطاطي او ليکله شوې وه د ۱۳۴۱ کال د همدې دستګاه د پرانستلو په مناسبت ليکله شوې وه چې په همهغه کال د پخواني پاچا محمد ظاهر خان له لوري پرانستل شوې وه. په بله لوحه د محمد داود د وخت د جمهوريت نښان کښل شوی وو او په دريمه لوحه د اميرالمومنين په هکله يو بيت ليکل شوی وو خو ساېز يې کم اوليکل يې مناسب نه وو. شريعت يار وويل: کوم فني شخص نلرو چې همداسي لوحې وليکي ځکه مې همدا لوحه په همدې جوړښت او ليکنه دلته موقتي اېښې ده.

په بله خونه کې چې د کارخونه وه توږل شوي لوښي ليدل کيدل او د رخام د ډبرې ډول، ډول رنګونه پکښې ښکاره وو. دا لوښي د لوړ هنر تمثيلونه وو. يوه لوحه د هرات پخواني امير محمداسمعيل په نوم د محمدرسول اخندزاده له لوري د سوغات په ډول ليکله شوې وه چې د ليکنې سره يې د افغانستان نقشه هم پکښې وه.

يوه ديوال ته يوه لوحه ولاړه وه چې د خلق دګوند نښان ورباندې اتخور شوی وو خود نښان مخ د ديوال لوري ته وو. ګواکې د کمونستانو په جنايانو شرميده او مور ته مخامخ کيدلای نشوای. شريعت يار وويل: دا ډيره سترة او ښه لوحه ده که فني شخص پيدا شي ددې نښان په ځای به د اسلامي امارت نښان ورباندې انځور کړو.

ددې دستګاه ماشينان د ايتاليا د هيواد جوړښت وو خو اوس د فني اشخاصو د کمښت له امله ټوله دستګاه بيکاره وه.

د دستګاه ددې برخې تر کتلو وروسته د ترکاڼۍ برخې ته لاړو هغه فعاله وه ميزونه او کتونه پکښې نوي جوړ شوي وو چوکې پکښې ښې ډيرې وې. د ميزونو مخونه يې د فارميکا له لرګي څخه جوړول همدي کار يې ښه هم لوړه کړې وه. ددې برخې ماشينونه بشپړ او پرکار لويدلي وو. دې دستګاه ته د هلمند ولايت له اړونده اداري برخو څخه د ميزاو چوکۍ غوښتنې راتلې او دوی ورته پوره کولې له همدې کبله بازار ته د وړاندې کيدلو جوګه نه وه.

دا کار ښځینه هم کولای شي. د حجاري اونجاري د فابریکې د لیدلو په وخت کی مولوی حبیب الله بیا د ټوکي په لهجه د فابریکې امیر ته وویل: دا دومره ستونزي ګالی یوازي ډبري توږی او دا ساده خبره ده...

ما وویل: یو ځل دي په فابریکه کي غواوي وربانددي ساتلې او اوس دا کار ټوکي ګڼې. شریعت یار وویل: خیر دی،دی خو دي وایې. خو ماوویل: موږ او تاسو چي په فرهنګي ډګر کي کار کوو دا هم دومره مهم کار نه دی. تیر کال د کویټي په ښار کي په یوه ریکشا کي سپور شوم. د ریکشې چلوونکي را څخه وپوښتل: څه کار و بار کوې؟ ما ورته وویل: دا کتابونه او مجلې چاپوم.هغه راته وویل:(یاره دا څه کار دی؟ تجارت مجاړت کوه د چاپ کار خو زنانه هم کولای شي.) په دې توګه مي د هغه چاتسلا کوله چي وربانددي ټوکه شوې وه.

یوه بجه او څو دقیقې وې چي دا دستګاه مو هم پریښودله او د امربالمعروف ریاست ته راغلو له هغه ځایه تردوډۍ خوړلو وروسته را رخصت او لمونځونه مو داطلاعات او کلتور په ریاست کي وکړل.

موږ نور ګرځیدلي نه یو خو په پوښتنه دومره پوه شووچي په لښکرګاه کي

روغتیا: د لښکرګا ښار روغتون درلود. داکتران وو ان چي عملیات هم کیدل. ناروغان بستر کیدل خو دوا یې نه درلوده.

**سره میاشت:** د سرې میاشتي ریاست فعال وو یو کلینیك یې هم درلود. ناروغان یې کتل. داکتران او نرسان پکښې وو. د معاش او دوا مرسته د فدریشن له لوري ورسره کیدله.

**مخابرات:** د لښکرګاه په ښار کي ښاري تلیفون کار کاوو خود ښهر لپاره هم د مخابراتو ریاست یوه تلیفوني دستګاه نصب کړې وه.

**ښوونه او روزنه:** لښکرګاه پخوا یوه د زراعت مسلکي او نوري لیسې درلودې. خو دا څو کاله ناخوالو هغه له منځه وړي وي. اوس بیا تر اتم ټولګي پوري همدا لیسې رسیدلي وې خو د ینې مدرسې، دارالحفاظونه او جهادي مدرسې وې چي د خلکو تنده پرې ماتیدله. دې مدرسو د لیلیې سهولتونه هم درلودل.

په همدې ورځ څه کم درې بجې را روان شوو. غوښتل مو دګرشك په لار راشو نهرونه او سربندونه یې هم وګورو خو وخت را ناوخته ښکاره شو او په پخوانۍ لنډه لاره کندهار ته لاړو.

په لاره کي چي مو د دې سفر خوالي او ناخوالي سره ویلې د کوربه کسانو خاطرې را سره دومره خوږې وې چي:

زموږ یو ملګري د بیت المال او کوټې په لګښت او مال کي دومره لاس نیولی وو چي ټولو به هغه د میلمانه خواب باله. هغه دټوکي په الفاظو دي مفهوم ته نژدې وویل: زه نور سم شوم

ددې جملې معنی دا وه چي د هغوی راشه درشي ده ته دا احساس ورکړ چي نور به نو ډیر میلمه پال وي.

(او خدای په امان)



# د پردیس پسرلی

عبدالروف بېنوا



دسبا وږمه چې راسي
نوي نوي غوټۍ وا سي
بلبلان نغمه سراسي

د خوښۍ صحنه خپره سي
خو یو زه په زړه خوږمن یم
اه پردیس د د بل وطن یم

لاس په لاس یاران تیرېږي
یو ویل ته هوسیږي
په ورو ورو سره مسیږي

زه د زړه سره زړا کړم
له نصیبه ګیله من یم
اه پردیس د بل وطن یم

په ګلونو پټ سوه غرونه
غاټول سره کړه شنه دښتونه
زلمي ټول کړي سیلونه

نو څه به دا پسرلی کړم
پُر ورده د خپل چمن یم
اه پردیس د بل وطن یم

څوك مي نسته چه یې یاد کړم
په لیدو یې زړګی ښاد کړم
بیلتون هسي نا مرادکړم

زړه ته تیر ملګري سته
چي یې میني ته نیازمن یم
اه پردیس د بل وطن یم

د خندا تلقین را مه کړه
په ژړا مي زړګی ښه کړه
ستا چي زړه وي هغه وکړه

ما نو پرېږده چه همداسي
په زړې میني درد من یم
اه پردیس د بل وطن یم

تر دې شنه اسمان را لاندي
ډيري سترګي ژړا کاندي
څوك خبر نه سوه پرې باندې

زه هم دوی سره ژړا کړم
په سرو سترګو یې مین یم
اه پردیس دبل وطن یم

---

**د بهار په زیړو ګلو ډیر بېرېږم**
**چه باران شي دباران سره ژاله شته**

خوشال خان خټک

# انار گل

عبدالشکور رشاد

راغلې په نڅا د ژوند ورمې، خاندي ګلونه بیا
وینښ کړه پسرلي دناز په خوب بیده ښاخونه بیا
پوري سرې لمبې کړلې په درختو د انار ګل
کان د حسن و چاود ، را بر سیر سوه سره لالونه بیا
بیا د باغ نسیم د غوټۍ شونډو ته خوله وروړي
ایسته یې له مخه د ښایست کړه نقابونه بیا
مست یې بلبلان کړه، په چغارو په نارو سوله
نوي کړه جامو ته انار ګل سره شرابونه بیا
پورته سوې وړانګې د ارغنداو، د اسمان څنډوته
دا چي را ښکاره سوو د شفق خوني موجونه بیا
باد چي پر را والوزي، سرې څانګي په ټالونو سي
ته به وا څپې وهي د سرو وینو رودونه بیا
اې د ارغنداو په ګلو ډکي د خوښۍ سیمي!
اې په میوو ښادي، د عشرت او خوشالۍ سیمي!

حق د بلبلانو په جانب دی که غوغا کا
وینم په ګلشن کښې د زاغانو اشیانې
پیر محمد کاکړ

د بلبلــو دکاروان لـــــه شر و شوره
چه له شرمه یې په سل پردو کښې پټ کړ
د شبنم جرس له خوابه کړ بیدار ګل
هغه راز کړ و نســیم وته ا ظهار ګل

شمس الدین کاکړ

# د سهار ستوري

عبدالحی حبیبي

د اسمان په تور دریاب کي   روڼ ګوهر دی چي خلیږي
د لیلا د اوربل تیک دی   کې د کور مشعل بلیږي
نه پوهیږمه چي څه دي؟
نه دی دا هغه هم نه دی

په تیاره او توره شپه کي   بله سوې ده ډیوه ده
څنګه ښکلې او ځلیا ده؟   د اسمان پر رپ پرته ده
روڼوي شپه د ویرژلیو
د غمجنو ویر لړلیو

مین پروت په بیلتانه کي   تر سهاره شپه کي تیره
نه یې خوب نه یې ارام وي   لټ پرلټ اوړي له ویره
نه ډیوه وي نه مشعل وي
د سهار ستوري یې مل وي

زه هم ډوب وم په تور تم کي   شپه مي تیره کړه په غم کي
نه مي خوب نه مي راحت وو   زړه وو ورک په دې ماتم کي
نه څه نو ر نه څه رڼا وه
توره شپه توره بلا وه

د تیارې وزر خپاره وه   شپه وه ډیره سهم جنه
د بل چا ږغ نه وو هلته   بې نا سازه بې ویرجنه
زه هم ویښ سترګي مي سرې وې
د زړګي ولې مي پرې وي

په تور تم کي یک تنها وم بیلتانه پله مرورلم
که مي سترګي پټولې   د لیلا خیال ویښولم
هسي شپه هسي عذاب وو
زړه په سره انګار کباب وو

توره دربه شپه وه تیره   لمن ړونه د اسمان سوه
د سها ر ستوري خلا کړه   شا و خوا لړ په روښان سوه
را ښکاره په دې تور تم سو
زما د سوي زړه ګلهم سو

اې د لمر قاصده راسه   تا دی څه پیغام راوړی
لږ رڼا خو راخپره کړه   ستا ارمان کا هر نتلی
زه هم غواړمه له تانه
څو خبري له اشنا نه

ته راغلی له رڼا یې   ستا پیغام د لمر وینا ده
ارمانجن زړګی مي غواړي   یو خبر ستا له هیواده
زه د توري شپې ویرجن یم
منتظر ستا د لیدن یم

راسه اې خوا خوږې ستوریه!   زه خو ستا سره خواله کړم
توره شپه مي تیره کړې   اوس د لمر خواته کاته کړم
ته پیشوا ته مي رهبر سه
د اشنا کوڅې له ورسه

مین وصل له لیلا کړه   له تورتمه یې جلا کړه
ستا دي وي د سهار ستوریه   لږ څه ډیره دا رڼا کړه
چه خوږ من زړګی ارام سي
په ښادیو ښاد ناکام سي



قدرت الله احمدي

د یار یاد مي په زړګي داغونه راوړل
چه ساقي راته د عشق جامونه راوړل
د رقیب په کور کښي بیا مرګی میلمه سو
چه ما خپل زړه ته خواږه یادونه راوړل
د امید باغوان د میني تخم پاشي
د ارمان غوټی چه بیا ګلونه راوړل




ع ب م ط

پـه کوم زړه کـي چي يادونه د يار نه وي
تصويرونه د ښايست د نګار نه وي

د ژوند راز چنبل خوړل ګټي يوازي
لاروی د ليونيو د ښار نه وي

کتابونه يې د عشق نه وي منلي
برابر د دلبرانو پـه لار نه وي

دا زړه ندی پر کاغذ جوړ شوی ګل دی
چي راتګ پرې د خزان او بهار نه وي

که نه زړه خو پيدا شوی معرفت ته
معرفت د ذات له ذات نه فرار نه وي

پيژندل د خپل جانان پـه هر چا فرض دی
هيڅ روا له فرض عينه انکار نه وي

که پـه مينه د محبوب سينه کباب کړي
د بلال رنګه مين لره عار نه وي

د جنت ديدن مشکل دی هغه چاته
چي بللی هيڅ غماز ګنهکار نه وي

# تکبير

ستا تصور مي هر مهال ميلمه وي
لکه پر مخ د ښکلو خال ميلمه وي

د زړه له ختو مي منګي جوړوي
خوب کي مي ستا د عشق کلال ميلمه وي

څه د نهارو د تکبير ښايست دی
لکه د ښار مو چي بلال ميلمه وي

مغلو داسي وراناوه لکه چي
روح پـه کابل کي دخوشحال ميلمه وي

اوري نظر نه دې باران د غزل
لکه د سترګو دې لېوال ميلمه وي

عبدالغفور لېوال

حسن باغ کښي او خندل د هر سوال و جواب کا
ژوند شو لکه ناوې د اميد پـه سرو ګلونو کښي
يو د ګلاب مخ کښي چي ښکاره کوم جوابونه دي
نشته يو هم نشته د منطق پـه کتابونو کښي

که يې پرې نور د الله نه وي اورېدلی
د کعبې د شګو ډک منبار به ځان کړم
هغه د مړو ډک نړينه ښه ده
د حاجيانو يې غبار به ځان کړم

# اتڼ چي

پروین فیض زاده ملال

چیري دی دلدار هغه د رزم نغمه ګر ساقي
هغه اتڼچي هغه ښاغلی څښور ساقي
هغه چی اتڼ کي په کړه وړه نڅا راځي
هغه چی پېکی په مخ را خپور کي په ادا راځي
چیري دي چه څښي یې په لراوبر مانښام راوړی
تور په رانجه سرې سترګي ساقي راوړی اوجام راوړی
ها چي د تندي پیاله کي څاڅکی مي په خال وهي
ها چي نسیم کي نظر د شپو ورځو جمال وهي
لاس کي یې دسمال د سرو، وریښمو په رپا سي
سور غاټول له نازه ورته کوږ سي په خندا سي
خاوره د وطن په مستی ښکل کړي پښو ته ترپ ورکړي
داسي د اتڼ د سر سالار سي ډول ته خرپ ورکړي
کوږ لکه لینده سي د ښو په څوکو سپر مات کړي
ټول میدان میوند شي د غلیم پوره لښکرمات کړي
تاو شي او را تاو شي د جنت ښکلې هوا راوړي
څوکي د لمن یې د بوډۍ تال په سما راوړي
واوړي او راواوړی مړوندونه یې ګېډی، ګېډی
ګوتي یې له نازه او له قاره شي کړی، کړی
مات شي او را مات شي لکه څانګه د ښکلا سره
ښکلی یې کړی کارتوس اوږې نری ملا سره
داسي دي را درومي چه ورخ سپینه شپه زري راوړي
تېر تر کوه کاف شي د پری د لاس وښي راوړي
یو قدم و شاته دوه و مخ ته په هنر ورشي
جوړ په اتڼ رزم کي زمری شي په سنګر ورشي
زني په ګډا، ګډا را ګډه لاس کي دسمال ورکړي
سپر لکه پوره سپوږمی او توره د هلال ورکړي
نجونو ته تر ملا ژی په ټپو، ټپو یې راولي
شرنګ یې د بنګړو شي په نغمو، نغمو یې راولي
خوږ لالی د خور شي او ارمان د خپلي میني شي
پرک لاسونه ورکي، او ارمان د خپلي میني شي
خدایږو چه لاسونه په دعا داسي دلبر غواړو
هغه د کړو بریتو خاوند لکه خنجر غواړو

# آشنا ته!

محمد هاشم نیازی

چې هیر مې نه کړې ای هیرجنه اشنا
لږ بی وفا غوندی ئی
درته زاری کوم حتمی به راځې
له ځانه ګرانه په ما
درته د مینې سوغاتونه لرم
ځکه چي مینه قیمتي سوغات د خدای له خوا دې
ورته لږ غوږ ونیسه
د ټپې زړه ناري مې اورې که نه؟!
له ډ: ټتو او زاریو سره
درته ناري وهی جانانه راشه
چی دریه یاد کړم ستا ها! تیر لفظونه
چې به دې تل ویلې
مینه په تلو را تلو زیاتیږي
کله راځه کله به زه درځم مینه
ای په ما ګرانه اشنا!
زه به دې څنګه تیر یادونه لمانځم
چې نه په ویښه نه په خوب کی راځې

د هجر توره تیغه کې مې د یار د وصال لمر وځلیده
د ظلم په سینه کې مې د زړه طالب خنجر وځلیده
جانان چې بیا له وخته زه مبلغه په جبل تور کړه بیا بیا.
له تاوه له هینه د رقیب د زړګي سره وسوزیده

م.ن




# زه خو یې وینم

سید عبدالخالق صادق

زه خو یې وینم دا هغه الفاظ دي چه د پل چرخي په دوزخي زندان کی د زندان په توره کوټه کی هره ورځ تر سل واره لا زیات د یو ناتوانه سپین ږیري مولوی صاحب د خولې څخه په داسي حالاتو کی اوریدل کیدلی چه سترگي به یې لمدې او حواس بی د لاسه ورکړی او سوتنی بی د غریبه ډك او په ډیر ویرجن اواز به یې داسي ویل: چه زه خو یې وینم او زه خو یې وینم او کله نا کله به یې کرار زگیروی او کراره سره ژړل چه ډیری ژړا یې د مخ پوست پر بل شکل کړی و. خوب او خوراك یې د عادي حالاتو څخه په ډیره کمه اندازه سره و او کله نا کله به یې د خوبه نارې کړې چه زه خو یې وینم بعضی وختونه به یې حواس د لاسه ورکړل او په زوره به یې نارې کړې چه زه خو یې وینم اکثرو بی فکره خلکو دده په باره کي ویل چه قصدا دا لیونتوب کوي چه دغه خیال لري چه دا لیونتوب به مي د خلاصون سبب سي دده دې ویرجنو حالاتو زه دې ته مجبور کړم څو ښه ور ته متوجه سم بیخي به څلورویشتو ساعتو کښي به مي ددې سپین ږیري مولوی صاحب خوب نه لیدی بعضی وخت به یې شپې په عبادت تېرولې او بعضی وخت به یې د شپې جارو را واخیستی او ټول اطاق به یې جارو کاوه او دغه الفاظ به یې تر خوله را استل چه زه خو یې وینم او زیات وخت به یې بندگی و عبادت ته وقف کړی و. دا چې د بند شپې او کړاونه او تکلیفونه هیڅوك و خوب ته نه پریږدي او چه سر پر بالښت کښیږدی خامخا خپله کورنی، کور، اولادونه او ټول دوستان ور یادیږي دې پریشانو او ویرجنو حالاتو زه هم و خوب ته نه پرېښودلم کله به د شپې پورته سوم مولوی صاحب به مي د عبادت په حال کي لیدی. چه زه و دې دوږخي زندان ته ورغلم د مولوی صاحب د بند موده دیارلس میاشتو او پنځو ورځو ته قریب سوې وه. مولوی صاحب یوه جوړه زړې جامې په غاړه کي درلودې یوه زړه د سپیني خاسې لنگوټه او یوه زړه د گلبهار دوبټه او بس.

کله نا کله چه به یې جامې پریوللي لنگ به یې واهه اوتر هغو به په لنگ کي ناست و چه جامې به یې د لمر په حرارت وچي سولې بیرته به یې واغوستلې ډیر د بې چارگی حالاتو کي یې د بند شپې سبا کولې. څو ورځي وروسته د قندهار د خاده څخه یې یو بله ډله اسیران د کابل د پل چرخي زندان ته راوستل او په بلاکو کي یې سره تقسیم کړل چه په هم هغه ډله کي یو نفر چه عبدالحکیم نومیدی د قندهار د ډنډ ولسوالی د میربازار د کلي اوسیدونکی و چه دی او نوموړی مولوی صاحب د هلمند په منطقه کي د کشکنخود په بازار کي کمونیستانو نیولي وه او څه موده عبدالحکیم او مولوی صاحب د قندهار په محبس کی په یوه اطاق کی سره تیر کړي وه؛ دلته یې په یوه نظر سره وپیژندل مولوی صاحب خپل ناتوانه او ضعیفه لاسونه پر عبدالحکیم باندي را وگرځول او په غیږ کي یې ټینگ کی او ورته ژړل یې تر روغبړ او روغ او جوړ وروسته یې ورته وویل چه زه خو یې وینم خپل د سترگو تور او د زړه سر اولادونه وینم او خپله معصومه او بیچاره میرمن وینم زه خو یې وینم قسم په خدای (ج) چه وینم یې هغه موټر هم وینم چه زما اولادونه او کډه پکښې ده عبدالحکیم ورته وویل چه ملا صاحب و خدای ته یې وسپاره مولوی صاحب په زوره ناري کړې چه و پاك الله ته مي سپارلي دي خدای (ج) دي ساتونکی سي زه خو یې وینم او د بې هوښی حالت پر راغی په خولو کي لوند سو وضیعت یې پر بل رنگ سو د زندان ډیر اسیران پر راټول سول او دې خطرناکو حالاتو موږ ټول وارخطا کړو د زندان مسئولین او د بلاك باشي ددې پیښي څخه خبر سول پس له دوو ساعتو او دیرشو دقیقو چه مولوی صاحب لا د بې هوښی په حالاتو کی و یو کمونیست صاحب منصب او څلور نفره عسکر د بلاك د باشي په شمول راغلل او موږ یې ایسته او دوري کړو او دوی ور تیر سول مولوی صاحب ته یې د بې هوښی په حالاتو کي په ډیرو بدو الفاظو بد ویل وکړل او کمونیست صاحب منصب چه په پښه یې کلك عسکري بوټ و ومولوی صاحب ته یې ټینگه لغته ورکړه ورته یې ویل چه ولاړ سه نوره ټکي او لیونتوب مه

کوه په دا رقم نه سې خلاصیدای او هغه افراد چه ورسره وه هغو ته امر وکی چه درکش یې کی در ویې باسی چه دی څنګه لیونی دی. هغو خدای ناترسو په ډیره بې رحمی سره تر یوه لاس او یوې پښې ونیوی او په خان پسې یې پر مځکه کشوی او لغتي یې ورکولې او په بدو الفاظو یې ورته ویل چه ولاړ سه ټکي مکوه ټکه. تر څه کشولو او وهلو وروسته د مولوی صاحب تر خوله په زوره داسي ږغ ووت چه الله الله . کمونیست صاحب منصب ویل چه بلا بلا الله وایي بلا د مولوی صاحب سره چه یې داسي غیر انساني او ناوړه چلند وکړ ددې غمناکه پیښې په لیدو سره چا ژړاوي کولې چا ښیراوې کولې په هم هغه ماښام زیات شمیر اسیرانو د خفګان له وجهي په طعام څکه و نکړه. زه په هغه شپه کي د عبدالحکیم په لټه کي سوم چه د مولوی صاحب په حالاتو کي یې په یوه لیدنه سره بدلون راوستی د شپې دوې برخي تیري سوي وي چه د عبدالحکیم په لیدنه بریالی سوم او عبدالحکیم په لمانځه بوخت او په اخیرنی ناسته کی و چه سلام یې و ګرځاوه تر دعا وروسته ور سره ملاقي سوم او د مولوی صاحب د پیژندګلوی او هغه الفاظو په باره کي مي معلومات څیني وغوښتل چه <u>زه خوبي وینم</u> عبدالحکیم اه کړه او ویې ویل چه مولوی صاحب ډیر خراب سوی و پخوا یې ډیر ښه صورت و رښتیا هم داسي بدي پیښي غر لاچپه کوي دی خو لا انسان دی ما ورته وویل چه نور مي په انتظار مه پریږده ژمونږ هم د طالبی محمودا ده نقل راته وکه عبدالحکیم راته وویل چه زه پخپله د

ګرشك څخه و قندهار ته راتلم پر کشکینخود مي زیات شمیر شورویان او داخلي کمونیستان له زیاتو ټانکونو او عراده جاتو سره ولاړ و او د دواړو طرفونو موټران یې راګرځول او تلاښی یې کولي ! مولوی صاحب هم چی په یوه بارداره موټر کی له خپلي میرمنی او ماشومانو سره سپور وو زمونږ په څیر له موټره را کښته کړ د مازدیګر تر پنځو بجو پوري یې مونږ هلته حصار کړو او وطني کمونیستانو قسم قسم بی ځایه پوښتني را څخه کولې او موټران د بیرته تګ په انتظار ولاړ و چه په اخیره کی یې یوې ډلي ته د موټر د سواری امر وکی او بله دیارلس کسیزه ډله چه په هغه کی زه او مولوی صاحب هم و را وګرځولو او ټانك ته یې پورته کولو مولوی صاحب ورته په زاریو سو او د خدای روی یې ورته شفیع کاوو چه ما ایله کی ما څه کوی زما سره دغه یوه بی وزله زنانه او دغه څلور نفره ماشومان دی بل ثوك نلرم په ما څه کوی ایله می کی هغه خدای نا ترسو کله د خدای روی مانه. چه هر څومره زاری یې کولې فایده یې نه کوله.

هغه موټروان چه مولوی صاحب ورسره و هغه ورته راتیر سو او ورته په زاریو سو چه دغه ملا صاحب ایله کی دغه واړه او زنانه ورسره د ي زه دا ماشومان څه کړم موټروان یي هم یو کنداغ و واهه او امر یي ورته وکی چه حرکت وکه که نه ضربه به دي کړو هغه د مولوی صاحب میرمن او ماشومانو چه دا حال ولیدی د موټر په سر کي د بار سربیره په بغارو سول توبه خدایه چه اسمان لاڅنګه ولاړ و. د مولوی صاحب معصومه میرمن د وارخطایي په حالاتو کی په ژړا او خدای د پاره د نارو او

راتاکیدلو په حالاتو کی د موټره څخه را ولویده او بغاري یې کړې چه زما میړه مه بیا یاست او څلورو ماشومانو یې د موټر په سر کي داسي حال جوړ کړ چه زه یې هیڅ رقم نسم تعبیرولای

اخیر یو صاحب منصب را تیر سو او هغي معصومي زناني ته یې وویل چه ته مه ژاړه در ایله کوو بې ته موټر ته پورته سه دی هم بیرته در ایله کوو اخیر یوه خبره او یو پوښتنه څني کوو او معصومه زنانه یې په ډیر قهر او سیاست او چم خم خطا ایستله چه درایله کوو یې او موټر ته یې ور پورته کړه او مولوی صاحب ته یې چپلاخه ورکړه چه پورته سه ټانك ته یې ور پورته کی. د ماشومانو او عاجزې نارې په زوره سوې کمونیستان ور تیر سول موټروان ته یې وویل چه خان دي د غاړی دی څه حرکت وکړه موټروان هم د ناچارۍ څخه موټر رهي کړ د مولوی صاحب ماشومان یي په داسي حال کي دده څخه جلا کړل چه دده تر سترګو سترګو اوس هم کیدل نو خود به یې ویل چه <u>زه خو یې وینم.</u>

خیر مونږ دیارلس نفر یې هم دکندهارد خاد پر خوا را وستلو چه هورې تر یوې نیمې میاشتي پوري زه او دغه مولوی صاحب سره یو ځای و او یو تر بله مو پوښتني سره وکړې مولوی صاحب اصلي د ډنډ د اولسوالی د محلجات د ګاړو د کلی اوسیدونکی و چه مولوی صاحب حبیب الله نومیدی ده خپله کیسه د قندهار په دوزخي خاد کي و ماته داسي وکړه:

ما په ګاړو کي امامت درلود او مشر زوی می څلورویشت کلن و په جهاد کي شهید سو څرنګه چي محلجات د شورویانو په ډیرو بمبارونو ویران خرابه او په خاورو

بدل سو زما کور هم په بمبار کي و نړیدی او و ښار ته راغلم په دریمه ناحیه کی د تور صاحب زاده په کوڅه کی مي د یوه دوست سرای خالي ولاړ و هلته مي وارول بل زوی مي چه پنځلس کلن و یو ځای مي د یو مستري سره شاگرد کی هغه هم د حضرت جي بابا سره شورویانو را شهید کړ تنها زه او دا څلور ماشومان چه دوه هلکان او دوې نجوني دي او یوه دهلکانو مور سره پاته سولو ژوند مو ډیر سخت سو چه ډوډۍ لا په مړه گیډه نه پیدا کیدله.

ما یو خوږ دوست درلودی چه په لښکر گاه کښي اوسیدی او ښه شتمن و په دغو ورځو کي ناڅاپه هغه راغی او میرمن یې ورسره وه چه سخته مریضه وه د علاج د پاره یې راوستلې وه. دغه زما دوست او دده ناروغه میرمني چه زموږ دا بده ورځ او اقتصادي کمزوري او لوږه ولیدل سم دستي یي یو څلور منی تیم غوړي. لس منه اوړه او یوه اندازه چای بوره او اورلگیت او نور د ضرورت وړ مواد د بازار د خوا څخه د خانه سره راوړل سبا چه موږ هغه ناروغه ډاکتر ته بیول سهار وختي ښار تړوله د شورویانو په ذریعه شا وخوا محاصره سو.پس له یوې هفتې چه محاصره ماته سوله او شورویان ولاړل هغه مریضه مو ډاکتر ته بوتلله او دوست مي ډیره دوا او درمل واخستل ویل دلته بله شپه نه تیروم مرگ هم پر خپل کور ښه دی ماته یي تر اندازې زیات وویل چه راځه زه یې مانع سولم او بهانه مي ورته وکړه چه زه څه نا څه اړه او مانده د خلکو سره لرم چه دغه کارونه خلاص کړم انشاالله پس له څو ورځو به درسم زما دغه دوست د لاري کرایه او څه دخرڅ پیسې را پرې ښودلې او راته ویې ویل چه زه سترگي پر لار او ستاسي انتظار یم مقصد چه ژر راسې او رخصت یې را څخه واخیستی رهي سو دی خو ولاړ پاته موږ سولو ما دغه عزم نه درلود چه لښکرگاه ته ولاړ سم د پاره د شپږو میاشتو لا نور هم پاته سولم هغه د خرڅ د کرایې پیسې هم په نس را څخه وخوړل سوې اخیر خبره ورځ تر بله ورځي سختیدله او اوضاع خرابیدله اخیر ډوډۍ لاهم نه پیدا کیدله مجبور سولم تر خپل دوست پوري و لښکرگاه ته ځان ورسوم د یوه بار.دار موټر موټروان ماته په سیټ کي ځای را کی او زما میرمن او ماشومان ته یې د موټر په سرکي د بار په منځ کی په یوه خوندي ځای کي کښینول موټر د لښکرگاه پر طرف حرکت وکړ کله چه کشکینخود ته راغلو لکه چه د تل دپاره یې زموږ جدایې را په برخه کړله.

خیر زه خو یي وینم هغه خپله میرمن او خپل واړه او لادونه پر نابلده لار د پردي موټروان پر زمه و نا بلده ښار ته زما د میرمني څخه د خرڅ او د لاري د کرایې دپاره یو غیران لا هم نه و او په ژوند یې لښکرگاه هم نه وه لیدلې او هغه زما د دوست ځای نوم او نښان هم نه دی وړ معلوم نه یې د رنگه لیدلی و نه یې نوم زده دی او نه یې کور او دکان ورمعلوم دی ماشومان خو مي بیخي کمکیان دی که چیري موټروان ورته ویلي وي چه خوري یا وریندارې یا بي بي چیري دي بوزم چیري ځې د چاکره ځې دا به څه ورنه وایې الله (ج) ښه پوهیږي.

خیر زه خو یي وینم او تر سترگو سترگو مي کیږي هغه زما د اولادو ژړا هغه زما د میرمني لیونتوب او زاری خیر زه خو یي وینم یوه میاشت او څو ورځي مولوی صاحب د قندها ریه محبس کي و موږ او دوی په یوه اطاق کي و دغه الفاظ به ئې په دغه طور سره ویل چه زه خو یي وینم او چه زما هم د پلي چرخي په محبس کي نصیب سوی و دا دی مولوی صاحب مي دلې ولیدی چه تر پخوا زیات ضعیفه سوی وو او په قندهار کی خو یي هیڅ د اولادونو د خوا اطلاع چا ورته را نه وړله د قندهاره ډك زړه د ارمانه سره کابل ته راغلی و عبدالحکیم چه د مولوی صاحب ویرجن او خواشینونکي قصه تر دغه ځایه را ورسوله د سهار اذانونه هم شروع سول زه او عبدالحکیم جان سره رخصت سولو د مولوی صاحب د روغ او جوړ درك بیخي ورك سو د ښد تورو کوټو او د زندان دیوالو خو موږ ته د ده په باره کي څه نسوای ویلای په هم دغه زندان کي مي سو دوه نفره عسکر لیدل کله نا کله به مي تر سترگو سول چه لمونځ به یي کاوه او پر سر به یې کوچنی د جیب دسمال تړلی و پس لمانځه به ولاړ و پس له ۹ ورځو چه د مولوی صاحب درك زموږ څخه ورك و نو هغه دوه نفره عسکر هر یو جلا جلا ولیدل او د مولوی صاحب په باره کي مي معلومات خیتي و غوښتل هغو دواړو هر یوه و دا بل ته خبره وکړل چه هغه دي خدای و بخښي موږ دومره خبر سولو چي هغه مولوی صاحب د هغه وهلو له وجهي مړ سو نور معلومات نلرو

د احمد شاه بابا دوره یوه طلایي دوره وه چي د ټولنی د مختلفو افعالو ټول واقیعتونه پکی انعکاس موندلي وو او ستراتیژي اساسات یي له ټولو خصوصیاتو سره را څرګند کړل. احمد شاه بابا پس له دی چي قدرت ته ورسید بی له ځنډه یي د افغانستان ټول ولایات د یو واحد مرکز په چاپیریال کی تنظیم او د افغان ولس ټولو قبایلو ته یي د عمل د وحدت مفکوره ورکړه ددي اصل پر بنا یي مادي او معنوی قدرت چي د امپراطوری لازمی شرایط محسوب کیږي تامین کړه. احمد شاه بابا خپل سیاست د قوي په اساس تنظیم کړ او د هغه د تاثیر لاندي یي تیت او پراګنده سیاسي شرایط په یوه متحده امپراطوری عوض او ننني افغانستان اساس یي کیښود.

احمدشاه بابا څو کاله له نادر افشار سره په جنګو کی اشتراك درلود، او ډیره تجربه یي د نظامي سوق او اداری په برخه کی تر لاسه کړی وه، چي ددي نظامي تجربو پر بنیاد یي د یوي منظمي اردو اماده کول، ترتیب او تنظیم دعسا کرو په مختلیفو صنوفو، حربي تاکتیکونو، نښانونو، القابو او رتبو په هکله عالي نظامي ابتکارات په عملي توګه تر سره کړل.

د افغانانو د نظامي تشکیلاتو موسس احمد شاه بابا ده هغه له یو پلوه د افغانستان د خلکو د ملي اوصافو او خصوصیاتو نه استفاده وکړه او له بل طرفه یي دقوی انکشافاتو د تامین او هم اهنګی لپاره خاص نظامي میتودونه وضع کړل. د احمدشاه بابا د زعامت ټوله دوره د افغانستان د نظامي تاریخ له نظره یوه کلاسیك دوره بلل کیږي. په دې دوره کي د افغانستان ادراي تشکیلات هم په منظم شکل سره د یوه مرکزی حاکمیت په چوکاټ کی تنظیم وموند. احمد شاه بابا تصمیم ونیو چي د افغانانو فوای جنګي مورال د کلاسیك نظامي اصولو سره مرتبط کړی او داسي یو مودل چي د نړی د نظامي تشکیلاتو په پرتله بی ساری وي د افغانانو د ملي فطري روحیه په اساس یو مخصوص عسکري تیم جوړ کړي.

احمد شاه بابا د خپلو اهدافو د تطبیق لپاره یوی قوي او منظم اردو ته ضرورت درلود خو د اقتصادي منابعو د کموالي په اساس یي نشوای کولای چي په بشپړه توګه یوه منظمه اردو جوړه کړی، هغه وه چی تصمیم یي ونیو چي د منظمو عسکري قطعاتو تر څنګ غیر منظم عسکري قطعات جوړ کړي او د افغان ولس خوانین او متنفذین په نظامي سوقیاتو او دولت په چارو کی باید مستقیمه برخه واخلي.

احمد شاه بابا خوانینو ته په داخلي چارو کی پوره صلاحیت ورکړی وو. او دوی هغه نظامی صنفونه چي جوړ کړي وه په نظامی سوقیاتو کی به یی همیشه برخه اخیسته، ددی سربازانو ټول حقوق او معاش، اسلحی، تجهیزات او د سواری اسونه د خوانینو او متنفذینو له خوا اماده کیدل. په دي شکل سره د هیواد دداخلی منابعو نه د نظامي امواراتو کي د اکثریتو خلکو برخه اخیستل، یو ډول حس د مربوطیت د واحد ملت او حکومت خوا ته کاوه.

احمدشاه بابا د دربار مصارف کم کړل، د دولت د کارمندانو او نظامیانو معاشونه په خپل وخت او زمان اجرا کیدل. مالی دفترونه، دخل و خرځ د دولت منظم وو هغه په پایتخت کی لاندی دفترونه پرانستل لکه صدارت (اعلی دیوان)، وزارت مالیه، د ضبط بیګی دفتر (افیه او کوتوالی)، نسقچی باشی (د مجازات د تطبیق اداره)، د اخبار او هر کاره باش دفتر، ضبط احوالات، باجیګر، صیر اب، خالفه جات، میر اخور باش (د حیواناتو حمل او نقل)، د ښار مشر او داسی نور او د ولایاتو دوایر د حاکم

تر اثر لاندې د لشکر امیر، مستوفي، قاضي، قلعه دار، د ثالیثاتو مامور، باجیګر، میر اخور، میر اب او د ولایت مشر او په دربار کې د انشا دیوان، عرض بیګی، مهماندار باشي، پیشخانه چي باشي، او نظامي برخه کې لښکر نویس، د نظام دفتر، اردو باش، جارچي باش، سیورسات چي او قور خانه موجوده وه.

پادشاه فوق العاده اختیارات په ټولو اجرائی، قضائي او نظامي برخو کې درلود، خو سره له دې احمدشاه بابا په مهمو نظامي او سیاسي حالاتو کې د جرګې له لارې متنفذ او خوانین اشخاص په مسئولیت کې شریك کول. احمد شاه بابا ډېره توجه نظامي برخې ته درلوده او په اردو باندې یې تکیه کوله. دده په دوره کې د اردو شمیره (۱۶) زره منظم سواره، پیاده، ثقیل او خفیف توپخانه (زینورك یا شهنك) او د اوښانو فیل او اسپ نقلیاتو ته رسیده. د اردو افسران متشکل وه له ده باشي، صد باشي، مینګباشي، قللر اقاسي، کشیك چي باشي، د ګارد قومندان، چي فظ قومندان، جزیر چي باشي (شهنګ چي) توپچي باشي، د لښکر امیر، سپهد سالار، اوله (۳۰) زرو نه زیاد غیر منظم عساکر په پایتخت، ولایاتو او سرحداتو کې موجود وه، چې د جنګ په وخت کې به د مختلفو قبایلو د جلبي قطعاتو شمیره زیاتیده. په دې دوره کې د احتمال پر بنسټ چې کوم خطر د غیر منظم لښکرو نه پیښ نه شي په نظامي تشکیلاتو کې داسې یو قوت چې هیچاته مربوط نه وه، او په هر رنګه شرایطو کې د امپراطور د حفاظت او ساتنې لپاره وفاداره پاتې شي، جوړ شو. چې دا قوت د غلامانو د ګارد یا د غلامان صف شکن یا شاهي غلام په نوم د مختلفو خلکو نه تشکیل شو، چې دا سربازان له خپلو اقاربو او دوستانو او اصلي برد وباش له ځایه لیرې وه نو ځکه یې له هیچا سره رابطه نه وه، دغو سربازانو فقط د شاه د امر تابع وه او د هیڅ بارسوخ او خان حاکمیت ته نه تسلیمیدل چې دغو سربازانو ته حرفه او د مسلکي سربازان ویلی شو.

د افغانانو د امپراطوری قلمرو د احمد شاه بابا په دوره کې تر هند د حیدراباد په غرب کې تر مشهد او نیشاپور په جنوب کې د عمان تر بحیرې پورې و سعت پیدا کړ چې ددې حدودو د حفظ او امنیت او عاجلو اقداماتو لپاره دوشرط په هره چه کې په لاندې ډول ضرور ګڼل شوي وه.

۱. د یو سریع الحرکت قوت، ډېر قوي با نظم او با دسیپلین نظام موجودیت.

۲. د نظامي قواوو وضع الحبیش په ټولو مهمو ساحو کې

چې ددې فکتونو په نظرکې نیولو سره به مشکلات نه پیدا کیدل او په ټولو ساحو کې په مسئوله اشخاص خپله وظیفه سرته رسوله.

## منظمه اردو:

د افغانانو د منظم اردو هسته د سواری صنفونه. د شاهي رسالي یا صف شکن غولامان، کشیك چیان، شاطران، د اروغه افراد، فاطر خانه، تربت خانه، صندوقخانه، عالي رتبه مامورین او نسقچیان شامل وه. همدارنګه د توپچي صنف هم کاملا په منظمي اردوکې شامل وو. منظم سربازان چې د نظامي قطعاتو مهم او اصلي رکن بلل کیږي تقریبا په بشپړه توګه په مرکز کې مستقر وه چې د ضرورت په وخت کې به له هغو نه کار اخیستل کیده. د منظمي اردو اساس حرفه او مسلکي سپاهیان تشکلیوی چې د همیش لپاره یې ثبت نام کاوه. او په خدمت کې شامل وه. هغو ته منظم او سیستماتیك ډول عسکري تعلیم او تربیه ښودل کیده. چه په شرایطو کې به ۳ میاشتې رخصت وه او متباقي وخت به یې په خپلو قطعاتو کې دنده تر سره کوله. ټوله منظم اردو له سواره خبر و تامونونه تشکیل شوی وه او ډېر کم پیاده جز وتامونه یکي موجوده وه. اسلحې او وسایل منظمه اردو ته د حکومت له خوا تهیه کرې فقط پیش خدماتو ته د دولت له خوا اسپونه ورکول کیدل

احمد شاه بابا د هند او پنجاب په لویو جګړو کې تر (۴۰) زرو پیاده، سواره عساکر برابر او تقریبا (۷۰۰) زنبورك لرونکي اوښان یې له توپخانې سره د جنګ لپاره اماده کړل. په تخمین ډول ددې اردو دسواره معاش د میاشتې (۱۲) روپۍ او د پیاده معاش (۶) روپۍ وې، نقدي او جنسي مالیات د افغانستان په کال کې ۳۰ - میلیو ن روپیو ته رسیده چې دریمه برخه یې په نظامي او ملکي چارو کې مصرف کیدلې او پاتې برخه یې د دولت په خزانه کې ذخیره کیدې.

## غیر منظم اردو:

غیر منظم اردو چې د نوي اردو لویه برخه یې جوړیدله هغه سربازان وه چې د لښکر کشۍ په وخت کې په ضرورت حاضریدل او له نظامي عملیاتو نه پس به بیرته خپلو مناطقو ته تلل. دغو قوتونو به د جنګ په میدان کې عسکري زده کړه تر سره کوله. غیر منظم اردو چې د سوارانو د خوانینو په نوم یادیږي له مختلفو ساحو نه به راټولیدل او اکثر دغه سربازان سواره وه. وسایط او اسلحې، د سواري حیوانات به د خلکو له خوا تهیه کیدل په معین وخت او محل کې به د شاه امر ته حاضریدل.

د غیر منظم اردو په چوکاټ کې کاره نوکراو ایله جاري قوتونه هم شامل وه چې دا افراد به په فوق العاده حالاتو کې جمع کیدل چې تعداد یې په مجموعي توګه لس فیصد ته رسیدل، ایله جاري افرادو ته ډیر کم حقوق ورکول کیدل چې له ده، روپیو نه یې تجاوز نه کاوه، دغه معاش د کلي د مشر له خوا ورکول کیده او د کلي مشر په د مالیې په مشکل د کلي له ټولو خلکو نه پیسې راټولولې. د ایله جاري په نوم ډله علاوه له عسکري خدمت نه کله کله د غیر نظامي کارو لپاره هم استخدام کیدل کله د تیمورشاه په دوره کې د کابل ایله جاري د ښار د کانال پاکولو لپاره راټول شوي وه.

بل ډول غیر منظم سربازان د داوطلب په نوم یادیدل، دغه سربازان به په ډیرو کمو سفر بریدو کې جمع کیدل، خو کله چې به یې د جهاد اعلان د دیني علماو له خوا کیده د دغو سربازانو شمیره به هم مخ په زیاتیدو وه. داوطلب سربازان ته به یې ده، تومان او معاش ورکول کیده خو د جهاد په وخت کې به بې معاش هم ضرورت ته حاضریدل.

د غیر منظم قوتونو په چوکاټ یې کله کله عمومي قیامونه چې د (اولسي قیام) په نوم یادیږي هم وظیفې سر ته رسولې چې په دې حالاتو کې ټول نارینه په جنګ کې برخه اخلي. اولسي لښکر د معینو اهدافو لپاره جدي فعالیتونه کول لکه د خارجیانو د تجاوز په وخت کې یا کله به چې د کومي واقعي په پرتله احساساتي شول نو خپلو نظامي فعالیتونو ته به یې ادامه ورکوله. په نتیجه کې ویلی شو چې غیر منظم اردو د افغانستان د عامو خلکو نه تشکیل چې د ضرورت په وخت به ټول نارینه به عملیاتو کې نظامي وظیفه سر ته رسوي.

پوهنمل عصمت الله "عثماني" د کابل پوهنتون د اجتماعي علومو د پوهنځي د علمي کدر غړی

## اخځونه:


۱. میرغلام محمد. افغانستان د تاریخ په مسیر کې. کابل: دولتي مطبعه ۱۳۷۰

۲. جلالي، علي احمد. د افغانستان عسکري تاریخ ۱-۲ جلد کابل: د نشراتو مدیریت، د دفاع وزارت، ۱۳۴۳

۳. کانګوفسکي. د درانیانو امپراطوري. ترجمه د ګل محمد نورزی. کابل: د علومو اکادمي ۱۳۵۷

۴. مونټ ستوارټ الفنستن. د کابل سلطنت بیان ۲ ټوك. ترجمه د محمد حسن کاکړ کابل: د علومو اکادمي، ۱۳۵۹.

۵. ګندا ینګ. احمد شاه بابا دراني. ترجمه د نصرالله سوبمن. کابل: د علومو اکادمي، ۱۳۶۵.

عطاوالله. دپښتو تاریخ لومړی ټوك، پیښاور: د برتکال، ۱۹۴۷.

# د افغانستان ملي لرغونتون (موزيم)

## ملي لرغونتون څه مهال او څنګه منځ ته راغلی ؟

## لرغونی او ګران بيه څيزونه ئی څه مهال

## د   چا لخوا او په څه ډول د يوه مخه لوټ سوه ؟؟

(عبد المجيد بابی)

په ګران هيواد کی د لرغونتون (موزيم) بنسټ په (١٢٩٧) لمريز کال کی ايښودل سوی دی مخکی لدی هم څرنګه چی ددې هيواد واکمنانو او پاچهانو د لرغونو څيزونو سره خانګړی مينه درلوده او زياترو يی پخپلو پلازغوليو (دربارونو) کی خپلو ځانونو ته لرغونتونونه درلوده چی هر يوه يی بيل ارزښت درلود. وروسته د دغو واکمنو له لمنو څخه همدغه لرغونی څيزونه او ډېلرونو او نيکونو څخه پاته شونی د لرغونتون (موزيم) تر انګړه را رسيدلی دی.

د افغانستان د لرغونتون لمړنی مېنه د کابل ښار د لويديځ په (۶) کيلومتری واټن کی د لوړبڼ (باغ بالا) په نيتليکيزه (تاريخي) ودانۍ کی وه چی د ټولواك عبدالرحمن خان د پاچهۍ په مهال کی جوړه سوی وه. لرغونتون دا مهال دس (عجايبخانې) په نوم ياديدی. او ټوله چاری يی په نيغه سره د پاچا تر لاس لاندی سر ته رسيدلی. بيا وروسته د لمړي ځل د پاره د لرغونتون د چارو د سمبالولو د پاره يو سړی چی غلام محی الدين خان نوميدی و ګمارل سو.

د لرغونتون لمړنی څيزونه همهغه د افغانی واکمنو لخوا ساتل سوی لرغونی څيزونه وه. چی د هغوی سره ئی د هغوی په پلازغوليو (دربارونو) کی شپې او ورځې سبا ګړي وې.

چی پدی څيزونو کی د پښتني واکمنانو او اولس د غزاو جنډې – د ميړنيو پښتنو لرغونی جامې- کمبلی. او په لاس ګنډل سوی ډول ډول کالی ـ- ډول ډول وسلی – لوښی او لرغونی ايکی (سکی) او همدارنګه د پيل د شونډك او لرګيو څخه جوړ سوی سوندوخونه او په لاس ليکل سوی ليکيان (کتابونه) د يادونی وړ وه.

په ۱۲۹۹ لمريز کال کی لرغونتون د هغه مهال د پوهنی د وزارت سره و تړل سو. څه موده وروسته په (۱۳۰۱) کال کی د لرغونو څيزونو د موندلو او نيتليك د لاروښانتيا د پاره د کيندنو چاري و فرانسوی کارپوهانو ته وردغاړی سوی.

دا کيندنی لړ او ډير تر سره سوې او پلاس راغلو

څيزونو د لرغونتـون په ارزښت کی زياتوالی راوست او پـه دې ډول لرغونتون د هيواد د نيتپليکيزه خاوری د زړه څخه په راتلو ارزښتناکه څيزونو باندی لاښکلی سو.

(۱۳۰۳) لمريز کـال راورسـيد او پـه همدغـه کـال کـی لرغونتون د لوړيځ (باغ بالا) له مانۍ څخه د پاچهی ارګ و ودانۍ ته وليږديدل سو. او دلته يی تر شپږو کلونو پـوری د خپل ژوندانه پړاوونه ووهل.

دا هغه مهال و چی ډيـر زيـات لرغونی اثار او څيزونـه د لرغونتـون پر زېرمـه ور زيـات سـوی وه پـه (هډه) او (بګرام) کـی د کيندنـو لـه زيـاره د اسـلام نـه مخکـی ارزښتناکـه څيزونه پـه لاس راغلی وه او پـه زرګونـو کـوچنـی ګچـی او ډېرين بوتان دلته کښيښودل سوه.

په دی ډول سره په همدغه مهال کی د کـابل لرغونتـون د نوموتو لرغونتونونو په ډله کی وشميرل سو خو بدبختانـه د (۱۳۰۷) لمريز کال په بدمرغه اووښتون سره لرغونتـون هم لکه د هيواد د نورو مهمو ځايونو غوندی زيات زيـان وليـد او زيان ئی لدی امله هم زيات و چه لرغونتون دننه پـه ارګ کی پروت و او د بريدونو زياتی څپيړی ئی پر مخ وخوړی.

د لرغونتـون څيزونـه پـه (۱۳۰۹) کـال کـی د کـابل پـه سهيل لويديځ لس کيلو متری واټن کی و يـوی نـوی ودانـۍ ته چی د (دارالفنون) په نوم يادیده وليږديدل.

د پوهنی وزارت چی بيا خپلی چـاری د سره پيـل کـړی د واکمنو لخوا ورتـه زياتی ايکی د لرغونتـون د پـاره ورکـړه سوی او ځيني هغه لرغونی څيزونه چی لاس په لاس سوی وه بيا رانيول سوه او لرغونتون ته وسپارل سوه.

د دوهمی نړيوالی جګړی وروسـته دلتـه زيـاتو هيوادونـو لکـه ايتاليـا ، امريکـا ، جـاپـان، انګليـس، هنـد او روس لرغونپوهانو کيندنی وکړی او د لرغونتون لرغوني زېرمه د هر وخت نه بډايه سوه.

د کـابل پـه لرغونتـون کـی چـی لـه اره د ټول افغانسـتـان ملی لرغونتون و څيزونه يې پر (۲) برخو ويشل سوی وه چی يـوې برخی څيزونـه يـې د اسـلام نـه مخکـی مـهال پـوری اړه درلـوده او د دوهمـی برخـی څيزونـه يـې هـم پـه اسـلامی مهالونو پوری تړلی وه

د اسلامی مهالونو خيني زيات ارزښتناکه څيزونه يې نه لاندی ډول يادولای سو.

په لاس سره په کوفی او عربـی ليـك دود بـاندی ليکـل سـوی سپيڅلی قرانونه. ميناتوری ليکيـان (کتابونـه). وسـلی - د پاچهانو او پښتنو تېرونو ډول ډول لرغونی جامی - پـه لاس باندی دليکل سوو ډول ډول ليکنو بيلګی، د غور او غزنـی د نوموتو واکمنو د مهال مسی لوښی، په غزنی کی انځور سـوی لـوښی او نـور څيزونــه، کندهـاری ډبرنـي لـوښی، خامکی او په ستنو سره جوړی سوی جامی او نور څرنګه چی ددی ارزښتناکه څيزونو څخـه پـه سقاوی اووښتـون کـی زيات څيزونـه لـه منځه ولاړه خـو بيـا هـم پـه هيـواد کـی د ۱۳۵۷ کـال تـر اووښتـون پـوری لا زيـات لرغونـی څيزونـه پخپل ځای پاته وه.

لکه : د سپيڅلی قـران د ځينـو ايـاتونو ليکنـه د حضـرت عثمان (رض) په ليکنه سره

د سپيڅلی قـران د ځينـو ايـاتونو ليکنـه د حضـرت علی کرم الله وجهه په ليك سره

د سپيڅلی قـران د ځينـو ايـاتونو کوفـی ليکنـه د حضرت امام حسن (رض) په ليك سره

د سپيڅلی قـران د ځينـو ايـاتونو عربـی ليکنـه د هوسۍ پر زړه باندی

د سپيڅلی قـران دری لـوی ټوکونـه چـی د حضـرت عثمـان (رض) د هغـه قـران څخـه يـې جوليـان (عکسـونه) اخيسته سوی وه چی په کوفی ليکدود سره ليکل سوی و.

په نسخ ليك سره د هغه سپيڅلی قران ژباړه چی پـه کوفـی ليـك دود سـوی و او پـه ۱۳۳۴ لمريز کـال کـی د باميـان د (غلغلۍ) د ښار په نژدی و کی مندل سوی و.

د اسلام د ستر استازی د هغـه ليـك جولـی (عکس) چـی د مصر د (مقوقس) په نوم يې ليکلی و.

د اسلام د ستر استازي په کوفي ليك باندي د هغه ليکني جولي (عکس) چي د (بحرين) د ملك (منذر د ساوي د زوي) په نوم يې ليږلي و.

د ستر پارکيوال (شاعر) مولانا جامي (سلسله الذهب ـ سلامان و ابسال ـ تحفه الاحرار و سبحة الابرار، يوسف و زليخا، ليلی مجنون او خرد نامه سکندري) ليکيان (کتابونه) او همدارنگه د بل لوی پارکي ويونکي (شاعر) نوموتي ليکيان (کتابونه) لکه (مخزن الابرار، خسرو شيرين ليلي مجنون، هفت پيکر او سکندر نامه) او همدا ډول د يوه بل نوموتي پارکيوال امير خسرو د هلوی ليکيان لکه (مطلع الانوار، خسرو شيرين ـ ليلي مجنون، هشت بهشت او ائينه سکندري) هم په ملي لرغونتون کي پراته وه چي ټوله ډير ارزښتناکه او ديوه مخه په طلايي کار سره ښکلي کړه سوي وه. او د ليکني چاري يې هم په (۸۹۹) لمريز کال پوري اړه درلوده.

مثنوی شريفه چي د مولانا جلال الدين بلخي اثر دي په لاس ليکل سوي وه او دملي لرغونتون د ليکيانو (کتابونو) برخه په ښکلي وه.

سربيره پر دې د بيدل د پارکو غونډله (مجموعه) چي په نستعليق ليك دود سره د طلا په اوبو باندي د بخارا د (غجدوان) په کلي کي په (۱۲۷۸) لمريز کال کي ليکل سوي وه او د بخارا د واکمن سيدعالم خان لخوا افغاني واکمن شهيد حبيب الله خان ته د سوغات په ډول راليږل سوي وه.

د خواجه حافظ د پارکو غونډله (مجموعه) چي د هرات د تيموري پاچا ساطان حسين ميرزا دپاره په (۹۰۷) لمريز کال کي د طلا په اوبو ليکل سوي وه.

د جامي (بهارستان) چي په (۹۸۳) لمريز کال کي په لاس ليکل سوي و.

د شيخ سعدي (بوستان) چي په لاس باندي د ميرعماد په ليك سره په ۱۰۱۳ لمريز کال ليکل سوي و.

عين الايمان ـ چي د ۱۳مي پيړۍ د نوموتي صوفي جناب سعدالدين صاحب پخپل لاس ليکل سوي و.

د سعدي (بوستان) چي په ۹۲۱ لمريز کال کي يې ليکنه سوي وه.

د سلطان ابوسعيدبهادر خان تاريخ: چي په اتمی لمريزی پيړۍ کي د افغانستان د واکمنانو څخه و او ليکنه يې په ۹۸۱ لمريز کال سوي وه.

يوسف و زليخا: په ماته ليکنه سره ياني په شکست ليك سره.

د شيخ سعدي حمام نبدی: چي د نوموتي ليکگر (خطاط) عطامحمد خان کندهاري په ليك سره ليکل سوي و.

او د شيخ سعدي غزليات: چي په ۱۰۱۲ لمريز کال کي ليکل سوي او په (۱۳۳۷) کال کي د بخارا د واکمن لخوا د افغانستان ټولواك شهيد حبيب الله خان ته د سوغات په ډول وړاندي سوي و چي همدا ټول ارزښتناکه ليکيان (کتابونه) په لرغونتون کي خوندي او پراته وه.

په ليکيانو (کتابونو) سربيره د ميناتوريو ځيني ارزښتناکه بيلگي او ټوټي هم هلته ځای په ځای وي چي په سقاوي اوښتون کي د دوی له منځه څخه د (بهزاد هيروي) ډير گران بيه ميناتوري غلا سوي.

په ميناتوريو کي چي د لرغونتون زېرمه په بډايه وه د گورگاني امير تيمور او دده د وزيرانو او پلازغولي د چاروکو جولې.

د مغولي پاچا شاه جهان جوله چي پر پيل سپور ښکاريدی د يادوني وړ دی.

او د ليکنو په برخه کي د ميرعلي هروي ـ عبدالرحمن الحسيني، او سيد عطامحمد شاه کندهاري ليکني د ارزښتناکه ټوټو څخه گڼل کيدی چي ټول همهلته خوندي وي.

د غور او غزني د لويو واکمنيو د مهال فلزي لوښي او نور گران بيه ځيزونه هم ددی لرغونتون تر غولي پوري رارسيدلي وه. او په ځانگړو ځايو کي د ښيښه لرونکو ميزو د پاسه ايښودل سوي وه چي ډير نوموتي او ارزښتناکه ځيزونه يې په لاندي ډول يادول کيږي:

د ژړو د تلي پله.

دژړو څراغ چې په غور کې موندل سوی او پر څنډو یې کوفي لیکنه درلوده.
د لاس کوچنی څراغ چې د لرغوني تیلي څراغو په ډول چې دوه نیم انچه یې لوړوالی درلود او په شپږمي لیږدیزې پیړۍ کې جوړ سوی و.
د ژړو څراغ پایه چې په څلورمه لمریزه پیړۍ کې په غزني کې جوړه سوې وه.
لویه کړایي چې قطر یې ۳۷ سانتي متره او لوړوالی یې ۱۸نیم سانتي‌متره و ــ پر دننه څنډه یې په کوفي لیك دود سره دا لیکنه درلوده:
(( البركة والبضاعة والثروة والسعادة والعظمة والسلامة والنصرة والندرة والنعمة والثمرة))
دا لوښي هم په غزني کې موندل سوی او کار یې د څلرمې لمریزې پیړۍ ګڼل کیده.
دوه یو ډول غابونه چې په منځ کې یې د زمري ښه انځور سوی وه او پر څنډه یې په کوفي لیك دود سره لیکل سوي وه: (باليمن والبركة والدولة والسلامة والسعادة تسودالكرامة).
د ژړو غاب چې په پنځمه هجري لمریزه پیړۍ کې جوړ سوی او په منځ کې یې (بالعافية) کلمه لیکل سوې وه.
د مسو څخه جوړ سوی ساغر چې دهرات د مسګرانو جوړ و او په دري ژبه یوه څلوریځه هم پر لیکل سوې وه.
درخام ډبرې هغه توټه چې په لوړه برخه کې یې دګلانو غوړشکه درلوده او په دواړو اړخونو کې یې (الله) لیکل سوي و دا د ډبرې یوازنۍ توټه وه چې د غزني واکمن په ماڼۍ کې د (فیروزي) د ودانۍ څخه پاته سوې وه.
د ژړو سماوار چې په ۹۴۷ هجري لمریز کال کې په غزني کې جوړ سوی و او پر سرپوښ یې لیکنه درلوده.
دوه نور سماوارونه چې په ۱۳۱۲ کال کې په غزني کې موندل سوي وه او د سرپوښونو پر څنډو یې کوفي لیکنه درلوده.

د وسلو په برخه کې ډول ډول غشي، لیندۍ، توري. تلوارونه، خنجرونه، چړې، سیلاوې، سپرونه، د غزاو جنډې، توپکونه، توپکیانی (توپانچې) او نور چې زموږ د میړنی اولس د میړانی ښکارندویی یې کوله د لرغونتون ښکلا یې ښه ترا څرګنده کړې وه. همدا ډول د پښتون واکمن شیرعلیخان د جګړې په مهال د څګرپوښ چې د ژړو څخه جوړ سوی و.
د واکمن دوست محمد خان د جنډې قبه چې دواړو خواو ته یې لیکنه درلوده او په ۱۲۷۴ هجری لمریز کال کې جوړه سوې وه ښی لور ته یې (یا حی یا قیوم، من صبر ظفر، نصرمن الله وفتح قریب، وبشرالمومنین، سلام قول من رب الرحیم ) او کیڼ لور ته یې (بسم الله خیرالسماء، یافتاح. انا فتحنا پیشوا، نصرمن الله ازقفا سالم او و نافع پیاـ والله خیرا حافظا) لیکنه درلوده.
د دوست محمد خان پیش قبضه، د شیرعلیخان توره، د وزیر اکبرخان غازي خنجر، د عبدالرحمن خان توره، د عبدالرحمن خان توپکی (توپانچه)، د عبدالرحمن پوځي جنډۍ چې ټوکر یې په زرغونه او سره رنګ سره ټوټې درلودې او په منځ کې یې سپین رنګ کار سوی و او ددی په منځ کې بیا محراب او منبر و او پر چاپیره یې لیکل سوی وه ((بیرق افواج نظام دولت افغانستان))
تور رنګه علم شریف چې د خپلواکۍ په جګړه کې د (تل) لاندې کولو او وزیرستان په محاذ کې په ځانګړې برم سره رپیدلی و.
پنځه ټوټې د میړنیو پښتنو د غزاو جنډې چې د ۱۲۹۱ لیږدیز لمریز کال د میوند په غزا کې تری کار اخیستل سوي و ــ منځنۍ برخې یې شنې او څنډو یې سپین رنګ درلود ــ او بیا یې د شنو ټوټو په منځ کې سپینه ګردۍ ټوټه درلوده.
همدا ډول لرغوني توپونه ــ په طلا سره انځور سوی توپکونه، د باروتو لوښي او نور بیلا بیل زیات لرغوني څیزونه چې په تندۍ کې یې لاتر اوسه د زاړه برم روښانه ستوري ځلیده په لرغونتون کې لاپه لوړ سر پراته وه.

د وسلو د یادونی څخه ور تیر سو په کندهار کی د ډبرو څخه د جوړو سوو لوښو په لړ کی د شاه مقصودی ډبرو څخه جوړ سوی څیزونه چی ډیر نوموتی وه. او په هغو کی کاسې، ساغرونه، غوریګان، غابونه، او نور ډول ډول څیزونه ښکاریده او ارزښت یې د ښکلا او نازك جوړښت له مخی ډیر زیات و.

د ډبرو څخه د یوه جوړ سوی ور (دروازې) دواړه اړخه چی په ۱۳۰۰ هجري سپوږمیز کال کی یې په کندهار کی کار بشپړ سوی و هم د مینه والو د کتنی دپاره هلته ایښودل سوی وه. یو هم د ډبری یو لوی دیګ و چی په غښتلی اټکل سره به د اسلام نه مخکی هم موجود و اوبیا په اسلامی مهال کی پر هغه عربی لیکنه هم سوی وه او تر هغه ځایه چی دا لیکنه ویل سوی وه دغه دیګ په هغه مهال کی په یوی مدرسی پوری اړه درلوده.

د لرغونتون د نیټلیکیزه او لرغونو څیزونو تر څنګ په کندهار، هرات، بلخ، غزنی، وردګ او نورو ځایو کی د ټوکرانو ټوټی چی پر هغوی باندی یې ښکلی خامکونه سوی وه یا په ستنو جوړ سوی وه. اویا د وریښمو څخه جوړ سوی وه هم په لرغونتون کی ځای درلود.

دا څیزونه چی مو په یاد کړه نیټلیک یې په اسلامی مهالونو پوری اړه درلوده. خو د اسلام د دمخه مهالونو څیزونه هم په زیات شمیر سره په لرغونتون کی پراته وه. چی بیا هم په سقاوی اووښتون کی د هغه ډیره برخه له منځه لاړه ولی د سقاوی اووښتون وروسته دا څیزونه چی زیاتره یې په بګرام او هډه کی موندل سوی وه بیا د لرغونتون په زړه کی ځای ونیو. د هډی موندل سوی څیزونه و زرګونو ته رسیده او دری دالاته په همدغه لرغونو ګران بیه او ارزښتناکه څیزونو ډك وه. وروسته د هډی او بګرام څخه سربیره په مرنجان غونډی، د خیرخانی په کوتل، نجراب، لوګر، غوربند، غزنی، ای خانم، کندهار، هرات، غور چی نوری پلټنی او کیندنی وسوی او په موندل سوو څیزونو یې کابل لرغونتون ډیر نوم وایستی. په (شهربانو، زاړه خلم او د تاشقرغان په نژدی و کی د بودایې مهالونو زیات بوتان وموندل سوه.

په ناد علی، او د سیستان په سیمه کی د کیندنو ښکاره کړه چی دلته د موندل سوو څیزونو لرغونتوب د حضرت عیسی علیه السلام د زیږیدو څخه څلور زره کاله مخکی ته رسیږي.

په لرغونتوب کی د اسلام څخه د مخه مهالونو څیزونه په لنډ ډول د سیمو په یادیدو سره در پیژنو:

د هډی اثار: هډه د جلال اباد په سهیل (۸) کیلومتری کی پرته ده او کیندنی یې په ۱۳۰۲ لمریز کال کی د فرانسویانو لخوا پیل سوی.

ګچی او ډبرین څیزونه یې خورا ډیر او زیات مهم وه او په دې ډول یې یادونه کوو:

د ګچو څلور اړخیزه ټوټه وه چی پر یوه مخ یې بودا د خپل پیل په رامولو لګیا و.

پر بل اړخ یې بودا د (بودهی) تر ونی لاندی ښکاریده.

پر دریم اړخ یې یو کوچنی او بودا ښکاری چی یو کوچنی وزته وړاندی وینه کوی چی تـه بـه اشوکا امپراطور سی. او دی و هغه ته یو مټ خاوره ورکوی.

او پر څلرم اړخ یې بودا، اندرا او برهما ښکاریده.

د بودا بل بوت: چی لوړوالی یې یو متر او ۲۱ سانتی مترو ته رسیده.

د بودا بل بوت چی پر تخت ناست دی او په ګوتو سره د مراقبی ډول څرګندوی.

د بودائی افسانو له مخی یو لیدنه چی په هغه کی بودا د کوچنیانو د خوړو څخه د سړیخور مخه نیسي.

د بودا بوت چی د خپل اس سره مخه ښه کوی.

د ډبری څخه داسی بوت چی د بودا د مړینی وروسته د هغه د ایرو د ویشلو بهیر پکښی ښکاری او د ټبرونو یو یو مشر پر اوښ باندی سپور وی او په یوه لوښی کی دغه ایره د خپلو سیمو په نیت وړی.

د بودا ډبرین بوت چی و شپنیانو ته وینا کوی.

د یوه زغره اغوستی سرتیری ډبرینه پژی (مجسمه)

د یوه شهزاده او یوه برهمن ډبرینه پژی (مجسمه).
د پاتیاوې او بگرام په ځیزونو کی هم چی لمړی ځای د کابل په شمال لس کیلومتری او دوهم په همدی لوری په اته کیلو متری کی پروت دی ډیر گران بیه او لرغونی ځیزونه چی له ډبرو څخه جوړ سوی وه په بیلابیلو کوټو کی پراته وه. او یوه پژی (مجسمه) یې د ډیر ارزښت وړ وه چی بودا پداسې ډول ښکاره کاوه چی د اوږو څخه یې اور او د پښو د تلو څخه یې اوبه راوتلې.
د بامیان اثار: بامیان دکابل په شمال لویدیځ ۲۴۵ کیلو متری کی پروت دی.
د بودایی اثارو له مخی زیات ارزښت لری تر ۱۹۲۰ زیږدیز کال پوری لا په لرغونتون کی د بامیان ځیزونو ځای نه درلود.
په ۱۹۳۱ زیږدیز کال چی کیندنی وسوی د بوتانو سر بیره زیات دیوالی جولیان (تصویرونه) وموندل سوه.
د دغو جولیانو سره لرغونی انځور سوی تابلو گانی هم پلاس راغلی چی د لرغونتون ښکلا او ارزښت پدی نور هم زیات سو.
دلته د (ککرک) په دره کی چی دغه جولیان موندل سوی وه د هغه مهال خلکو د لمانځنی دغه ځای د مسلمانانو تر راتگ پوری چی د نهمی زیږدیزی پیړی وروستی کلونه وه لاهمهغسی اباد و. او کله چی بودایان د مسلمانانو د راتگ څخه په ویره کی لویږی ددغو جولیانو مخ په گل وهی خو د مسلمانانو سترگی ور وانه وړی. او د ورانی څخه وژغورل سی. خو د لمانځنی دا ځای په ۱۹۳۱ زیږدیز کال کی و موندل سو.
د کابل په ځیزونو کی چی د ۱۳۱۲ څخه په شیوه کی ـ خیرخانه او د مرنجان غونډی کښی دکیندنو له امله پلاس راغلی وه په لرغونتون کی یې په دوو ځانگړو کوټو کی ځای درلود. او ارزښت یې د لرغونتوب له مخی ډیر زیات و.
همدا ډول د (تپه خزینه) څخه چی د کابل ښار په لودیدځه خنډه گی په چنداولو کی پرته ده د پلاس راغلو ځیزونو څخه یې ځرگندیږی چی د هغوی نیتلیک و ځلرمی او پنځمی زیږدیزی پیړیو ته رسیږی.
په گران هیواد کی د اسلام څخه دمخه مهالونو او بیا د اسلام څخه په را وروسته پیړیو پوری اړوند په سلگونو او زرگونو د سروزرو، سپینو زرو او مسو څخه جوړ سوی سکی چی په بیلا بیلو مهالونو کی موندل سوی او تر لرغونتونه را رسول سوی وی. په خپلو ټاکلو ځایونو کی په بشپړه امانتداری سره پرتی وی.
چی د بیلگی په توگه د خزینه امو څخه د هخامنشی مهالونو (۱۵۰۰) سکی ـ د بلخ څخه (۱۷۰) یونانی سکی چی په ۱۹۶۶ زیږدیزکال کی موندل سوی او نیتلیک یې (۳۸۰) مخزیږدی (ق.م) پیړی ته رسیده.
د چمن حضوری د موندل سوی خزانی څخه (۱۰۰۰) سکی چی (۱۱۵) یې (شلمبرژه) فرانسوی لرغونپوه ځیړلی وی او نیتلیک یې د مخزیږدیز تر ۴۰۰ کالو پوری رسیده.
د خوگیانو ولسوالی له (۵۰) نوموتو سکو څخه یې ۱۲ سکی و لرغونتون ته لیږدول سوی وی چی نیتلیک یې و مخزیږدی ځلرمی پیړی ته رسیده.
له (میرزکی) څخه لږ تر لږه ۱۱ زره سکی په (۱۹۴۷) زیږدیز کال کی موندل سوی وی چی ۴۸۴ یې د سپینو زرو او (۲۰۱۲) دانی یې یونانی او څه یې هم باختری درهمونه وه او ۳۳۳۵ یې ساکی درهمونه وه.
د بگرام څخه (۳۰۰۰) بیلابیلی سکی د (۱۹۴۱) او (۱۹۴۶) زیږدیزکلونو په ترځ کی پلاس راغلی وی.
چی ټولی پورته یادی سوی سکی د نورو ډول ډول زرگونو سکو سره یو ځای په ملی لرغونتون کی خوندی وی.
کله چی په هیواد کی د غوایې کودتاچیانو سیاسی واک ترلاسه کړ او د افغانستان جمهوری نظام یې رنگ کړ نو داسې ویل کیده چی د ملی لرغونتون ځیزونه لیننگراد ته لیږدول سوی دی ولی د هغه مهال حکومت چی د ۱۹۷۹ زیږدیز کال په اپریل کی دا شتمنی د کابل په زړه کی یوه ځای ته لیږدولی وه بیرته په ۱۹۸۰ زیږدیز کال کی و لرغونتون ته دا ټول ځیزونه راوړه سوه پدی مهال چی

امریکایې او برتانوي پلاو چې لا یې په کابل کې اوسیدنه درلوده دا لرغوني شتمني یې د ۱۹۷۴ زیږدیز کال د لستونو او نوم لیکنو سره و کتل او څرګنده یې کړه هغه دوه طلایي ځیزونه چه په ۱۹۷۸ زیږدیز کال کې وړه سوي وه همهغسې لا بې درکه وه.

د یوې بلې ډنډوري له مخې په طلا تپه کې چه کمه طلایي خزانه موندل سوي وه ګواکې هغه و روسیې ته لیږدیدلې ده نو بیا د هغه مهال حکومت په ۱۹۷۸ زیږدیز کال کې دغه ځیزونه چه په لمړي مخزیږدیزي او لمړي زیږدیزي پیړۍ پوري یې اړه درلوده د یوه نړیوال کنفرانس په لړکې یې چې د کوشانیانو دوري د ځیړنې په هکله په کابل کې پیل سوی و ښکاره سوه او د ۱۹۹۱ زیږدیز کال په وروستیو کې و ډیپلوماټانو ته هم دا لرغوني ځیزونه وربښکاره سوه وروسته دا طلایي خزانه په بکسونو کې کنبیښودل سوه او په ارګ کې دننه په یوه لرخونې (زیرزمینی) کې چې په ملي بانك پوري یې تړاو درلود کنبیښودل سوه.

کله چې په ۱۹۸۹ زیږدیز کال کې د شوروي ځواکونو د شړلو وروسته کابل د وسله والو مجاهدینو د بریدونو تر ویره لاندې و د لرغونتون مامورینو د لرغونتون ډیر ګران بیه او ارزښتناکه ځیزونه په بکسونو کې ځای پر ځای کړه او د لرغونتون په زیرمه ځایونو (تحویلخانو) کې یې کښیښودل. یوازې ډیر درانه او هغه ځیزونه چه د لیږدیدنې یې د ځان سره کړاو درلود ځای پر ځای پاته سوه.

د ډیری اریانتیا ځای خو دادی چې د بودا هغه پژۍ (مجسمه) چې ۳۳ انچه لوړوالی یې درلود او نیتلیك یې و پنځمې زیږدیزي پیړۍ ته رسیده یوه شپه د لرغونتون څخه وایستل سوه. او دا چه څه ډول غلو به هغه ایستلې او څه ډول به یې ایستلې وي تر اوسه لا یو پټ راز دی.

په هر حال ملي لرغونتون د غوایې دکودتاچیانو او د روسي ځواکونو د اوسیدنې په مهالونو کې تر ډیره ځایه بیله کومې غتې لاسوهنې څخه همهغسې پخپل ځای پاته و.

خو کله چې کابل د ۱۹۹۲ زیږدیز کال په اپریل کې په بشپړه توګه د مجاهدینو پلاسو کښیوت او د غوایې د کودتاچیانو ۱۴ کلنه واکمنې یې پای ته ورسول د مجاهدینو بیلابیلې ډلې پخپلو منځونو کې په جګړو بوخت



سوی. پر ښار باندی بریدونه زیاتره د سهیل لخوا پیل سوه او په دارالامان کی ملی لرغونتون چی د کابل په سهیل (۶)کیلو متری کی پروت و د جګړو په لمړی کرښه کی ودرید هر ځل چی به کمی ډلی دلته واك ومونده دغه ملی ویرانه او دلس هاوو کلونو په هلوځلو سره موندل سوی ملی خزانه به لوټیده. لمړی هغه ډله لرغونتون ته ورسیده چی په افغانستان کی یې د پښتنو تېر بی فرهنګه باله د دوی په خوله ددغو بی فرهنګو د کلونو کلونو د فرهنګی زیار له امله دغه ملی راټوله سوی خزانه دغو په اصطلاح فرهنګیانو لوټ او تالار کړه.

د ۱۹۹۳ لیږدیز کال په می کی د حزب وحدت ډلی د عبدالعلی مزاری په مشری وکولای سوای د دارالامان سیمه چی تر دغه وخته د نظار شوری دستمی ډلی پلاس کی وه تر خپل واك لاندی راولی اوس نو ددوی لخوا د برهان الدین ربانی د حکومت اړونده مامورینو ته اجازه نه ورکول کیده چی لرغونتون ته ولاړ سی.

د تنظیمونو د بریالیتوب څخه دری میاشتی وروسته نجیب الله پوپل چی د لرغونتون ودانۍ ته ولاړ ویې لیدل چی ټول بکسونه ظاهرا پر خپل ځای پراته دی خو دا یې ونسوای کولای چی د بکسونو دننه شننه او پلټنه وکړی بیا د برهان الدین ربانی د (نظار شوری) ا و حزب وحدت د ډلو تر منځ جګړو سختوالی وموند د جګړو د سړیدو څخه دری ورځی وروسته چی نجیب الله پوپل بیا په غیر رسمی ډول لرغونتون ته ولاړ ویې لیدل چه د هغی توغندی له امله چی د ۱۹۹۳ زیږدیز کال د (می) په ۱۲مه د لرغونتون پر بام لګیدلی وه د هغه انځور سوی لرغونی دیوال بدنه چی د هیواد په شمال کی د کوشانیانو د لرغونی ښار څخه چی د (دلبرجین) پر غونډۍ ودان و پلاس راغلی او په ځلرمی او پنځمی پیړیو پوری یې اړه درلوده پر مخ سوځل سوی او د جوړیدو څخه وتلی و. او نور بکسونه او الماری بیا ظاهرا پخپل ځای پاته وی.

کله چی دریم ځل پوپل بیا په پټه د سپتمبر په منځ کی د زیان رسیدو په منلو سره د لرغونتون څخه کتنه کوله ویې لیدله چی ترلی بکسونه مات سوی او ځینو نه یې ورک سوی دی. څه پاته سوی ځیزونه یې د لرغونتون په غولی کی پاشلی ښکاریده د لږ مودی وروسته د (B.B.C) خبریال موزیم ته ورغلی او ویې لیدله چی بکسونه د خپلو ځایو څخه بی ځایه سوی او خالی سوی دی. یوازی د بودا د پژی (مجسمی) ککری چه د زېرمه ځای (تحویلخانې) د کړکی سره نژدې د اوسپنیزو سیخونو پواسطه پوښل سوی وه پاته وه. او تر همدغه کړکی پوری د دباندی څخه د موټر د راتلو له امله د ټایرونو نښی ښه لیدل کیدې.

(نانسی دوپری) وایې د ۱۹۹۳ زیږدیز کال د سپتمبر په وروستیو کی په افغانستان ا وپاکستان کی د ملګرو ملتو د سرمنشی ځانګړی استازی (سوتوریس موسوریس) په غوښتنه کابل ته ولاړم. (موسوریس) ویلاړ درلود چی د عبدالعلی مزاری خوښه پلاس راوړی څو د لرغونتون د جوړونی او ساتنی چاری تر سره سی.

د ۱۹۹۳ زیږدیز کال په نومبر کی سمدلاسه د ملګرو ملتو دبشری اسکان له مرکز (هبیتات) څخه وغوښتل سوه چی د ژمی د پیل څخه وړاندی لرغونتون د ټینګتیا په هکله څیړنه وسی. څو د واورو د اوریدو او زیرمه کیدلو له امله ښایې د بام چتونه را ولویږی او ګودامونو ته د اورښت (باران) اوبه لاره ومومی.

هبیتات Habitat خبر ورکړ چی په هره کوټه کی بکسونه پرانستل سوی. او هم د لرغونتون څخه جولیانو (عکسونو) ښکاره کوله چی لرغونی بوتان او نور ارزښتناکه نیتلیکیزه ځیزونه په ګډوډ ډول دلته او هلته پاشلی پراته دی، د دوسیو الماری، اسناد، پانی او نور کتلاکونه بیله تشخیصه یو پر بل کوټه سوی او اور ورته اچول سوی و د فولادی بکسونو کینې او ښی میخونه کښل سوی او کیواړونه(قلفونه) یې مات سوی وه کریټونه او کارټونونه خالی سوی دی. (هبیتات) سپارښتنه وکړه چی ټینګی کړکی باید کښیښول سی او د زیرمه ځایونو غولی د هوا په وړاندی ټینګ کړه سی او اوسپنیزه ورونه او کړکی کار کړه سی.

(وریس) چې د ارزیابی راپور تر لاسه کړ د سپتمبر په ۲۷مه نیته یې د ځانګړو پوهانو غونډه په چټکۍ په اسلام اباد کې را وبلله. او د لرغونتون د ساتنې دپاره یې د یونان د حکومت مرسته چې د همدې کار دپاره ټاکله سوې وه یاده کړه.

دوې ورځې وروسته دوې خپلـه کـابل تـه ولاړه څو د لرغونتون څخه لیدنه وکړي. دې لمړنۍ سرې و چې د سکو د کوټو د لیدلو اجازه ورکړه سوه ده تـه د کتـو سره سم څرګنده سوه چې د لرغونتـون د سکو ټولـه کارټنونـه خالي سوي او (۳۰۰۰۰) لرغوني او ګران بیـه سکې ټولـې دیـوه مخه لوټ سوي دي ده د عبدالعلي مزاري څخه د مرستې غوښتنه وکړه څو په چټکۍ سره لرغونتون وژغورل سي.

کار د ۱۹۹۳ کال د (سپتمبر) پـه ۲۱مـه د (هبیتـات) تر څارنې لاندې پیل سو. (دوپری) داهم وایي د ۱۹۹۴ کـال پـه (مې) کې زه کابل ته ولاړم او د (مـې) په شپاړسمه مې ټولـه ورځ د لرغونتون په زیرمه ځایونو کې په کتنو تیره سوه. تر سره سوې کار په رښتیا د داډ وړ و کـه څه هم د کـارکونکو دپاره شرایط ډیر بې خونده وه، ژمې ډیر سوړ و ـ دتودوخې او روښنایی هیڅ وسیله نـه وه او یـوازې تیلـې څراغونـه د لرغونتون د روښانـه کولو دپاره پکار اچول سوي وه. ټولو کوټو ته ټینګ ورونه (دروازې) لویدلي وې.

د ۱۹۹۴ کال په جولای کې ۱۶۰۰۰/ ـ لرغوني څیزونه چې د غلو او لوټمارانو څخه پاته سوي وه. بیـا د لرغونتون د کارکونکو لخوا پـه نـوو پـانو کې ولیکل سوه چې زیـاتره ورې او لویې ماتې ټوټې وې، دهلیزونـه د سره پـاك سوه او ۳۰۰۰/ – د ختو لوښې بیا لـه چتلیـو څخـه را ووتل او پـه ځانګړو کوټو کې ځای پر ځای سوه.

یوه کوټه د اسلامي مهالونو د ژړو له ماتو سوو – ویلې سوو او یا ټوټه سوو څیزونو څخه ډکه سوه پـه کتـابتون کې هـم ۲۲۴۷/- ټوکـه ډول ډول کتابونـه چـې لاپاتـه وه سـره یـوځای سـوه خـو بدبختانـه چـې د ارزښتناکـه لیکیـانو (کتـابونو) څرك هـم نـه څرګندیـده ځکـه هغـه مخکـې لا د ورهنیزو (حرفوی) غلو پلاسونو لوټ سوي وه.

د ژغورنې د کار د دې پړاو وروسته څرګنده سوه چې د لرغونتون د لرغوني شتمنۍ (۷۰) برخې لوټ سوي وې.

لوټمارانو دا لوټماري داسې کړې چې د لرغونتـون پـه هکله یې پوره جوتتیـا تـر لاسه کړې او بیا یې پـه لوټماري پیـل کړې دي. لوټمـاري تـه یـې بشـپړه وخـت پـه واك کـې درلود. او په ډاډه زړه یې دا د سپیتانې چاري تر سره کړې دي. دا لوټماري د ناپوهانو او بیسوادو لخوا نه ده سوې او نه دا په تنظیمونو کې د بې پروا او ایله جاري کسـانو کـار و دا کسـان د لرغونـو څیزونـو مـاهره غلـه وه د بیلګې پـه ډول هغوی د لرګیو او عاج ډیـر ګران بیـه حکـاکې سوې څیزونـه خـوښ کـړي او وړي یـې دي د (۲۰۰۰) ټوکـه ګران بیـو لیکیـانو (کتـابونو) لـه ډلـې څخـه یـې یـوازې هغـه ډیـر ارزښتناکـه د انځورونـو او رسـامیو لرونکـې لیکیـان (کتابونه) خوښ کړي دي. بیا هم د نیکه مرغه ځینې غټ او نوموتې ارزښتناکه څیزونـه لاتري پاته سوي وه چې پـه هغو کې د (کنیشکا) پژې (مجسمه) وه چې د کابل په شمال (۱۴۵) میله واټن کې د سره کوتل په سیمه کې موندل سوې وه چې په دوهمه زیږدیزه پیړۍ پوري یې اړه درلوده.

- د ناستې پـه ډول د بـودا بـوت چې پـه څلرمـه پیـړۍ پـورې یـې اړه درلـوده او د کـابل د مرنجان لـه غونـډۍ څخه پلاس راغلی وه.
- د مرمرو څخه جوړه سوې زیره لرونکې بـوت چې پـه دریمه زیږدیزه پیړۍ پوري یې اړه درلوده او د هیواد پـه شمال ختیـځ کـې د (ای خـانم) لـه سـیمې څخـه پـلاس راغلی وه.
- یو ښکلی انځور سوي دیوال چې په لښکرګاه کې د غزنویانو د ژمنې پاچهۍ پـه مـانۍ څخه راوړل سوي و او په یوولسمه زیږدیزه پیړۍ پوري یې اړه درلوده.
- د تور مرمر څخه په کندهار کې جوړ سوی او د هغه ځایه راوړه سوی لوښی چې پنځوس انچـه یـې قطر و او په ۱۵مه او مه۱۶ پیړۍ پوري یې اړه درلوده.

او هم د نورستان څخه یو شمیر راوړه سوي ځیزونه لاد چپاو او لوټماری د پورته یادسوي پړاو څخه خوندي پاته سوي وه.

همدا ډول (۱۶) فلزي چمدانونه او یو شمیر نور ارزښتناکه ځیزونه خو لا مخکي لدینه چي مجاهدین کابل ته ورسیږي د هغه مهال د حکومت د ښار په دننه کي یوه امن ځای ته لیږدیدلي وه چي د هغو څخه رښتیني جوتتیا د اسرارو څخه باید وګڼل سي ځکه لست یې د ۱۹۹۳ کال په توغندیو کي د اور په لمبو کي وسوځل سو.

(دوپری) وایي «د رباني حکومت موږ ته ډاډ راکړی و چي اوس هم زیات له ۲۰۰۰۰/- طلایي ګینو څخه چي په طلاتپه کي موندل سوي وه. د جمهوري ریاست په مانۍ کي زموږ سره خوندي دي».

خو چا ددې شیانو ماهیت او د هغو په هکله د پوهیدنی چانس ندی تر لاسه کړی. (ګوره چي هغه به اوس تښتیدلو په کوم ځای کي او یا د تښتیدلو لوټمارانو پلاس کي وي؟) (په غرو او درو کي به ورسره وي؟ که به یې خپل بهرني ملاتړي په خوښ کړي وي؟)

په هر حال کله چي مجاهدینو کابل په لاس راوړ داسي ډنډوره وه چي لرغونتون د یوه مخه د مجاهدینو لخوا لوټ سوي دي د پیښور – اسلام اباد او کراچي بازارونه د غلاسوو اثارو څخه ډك دي.

(دوپری) وایي یو وخت ماته هم خبر راغلي چي د لرغونتون ټوله ځیزونه په چترال کي دي او د لوړو بیو په انتظار کي ایښودل سوي دي. هغه و چي د بهرنیانو یوه ډله چترال ته ولاړه خو دوی یوازي د کباړسوو ځیزونو یو دردوونکي کلکسیون ولیدی. ما خپله هم ډیر څه ولیده خو هغه ټوله جوړ سوي او پروني ځیزونه وه.

د لرغونتون د ځیزونو څخه (۱۰) ټوټې د یوه نه پیژاندی (مجهول الهویه) افغان لخوا و یوه پاکستاني یوه ته د ۱۹۹۴ کال په اپریل کي په اسلام اباد کي ورښکاره سوي وه. خرخونکي دا هم ویله چي د عاج دا ډول نوري ارزښتناکه ټوټې به هم وړاندي کړم. خرخونکي د دغه (۱۰) ټوټو دپاره دری لکه ډالره غوښته بیا داسي ډنډوره سوه چي دغه ټوټې د ۶۰۰زره ډالرو په ارزښت د لندن- توکیو او سویتزرلنډ په بازارونو کي ایښودل سوي وه. په ۱۹۹۵ کي د عاج زیاتي ټوټې چي زښته زیاته بیه یې درلوده د اسلام اباد په بازار کي ولیدل سوي. د ۱۹۹۵ کال په سپتمبر کي د کراچي د (هرالډ) مجلي د جنرال نصیرالله (بابر) له خولي لیکلي چي ما د بګرام یوه ټوټه لرغوني عاج په ۱۰۰ زره ډالرو رانیولي دي او کله چي په افغانستان کي سیاسي بهیر ټینګتیا ومومي هغه به بیا د افغانستان حکومت ته سپارم.

دغي مجلي دا هم لیکلي چي بینظیر بوټو د پاکستان صدراعظمي (په هغه مهال کي) هم د دغو لرغونو ځیزونو رانیولو ته څه پیسي ځانګړي کړي دي څو د سیاسي امن وروسته هغه بیرته د افغانستان حکومت ته د سوغات په ډول ورکړي.

دا و د لرغونتون غملړلي داستان چي د چور او لوټ برخي ته یې (دوپری) هم زیاته پاملرنه کړي وه. خو ښاغلي محمد اسمعیل یون پخپل په زړه پوري لیکي (کتاب) کي چي (افغانستان ته اووښتي فرهنګي زیانونه) نومیږي لیکلي دي.

کله چي لرغونتون د بیلابیلو ډلو لاس ته ورغلي هري یوی تر خپلي وسي شیان پکښي غلا کړه خو هغي ډلي چي په لمړي پړاو کي یې لرغونتون پلاس کي و په ډیر ماهرانه ډول د لرغونتون زیاتره ځیزونه غلا کړه. او بیا یې د نړۍ په بازارونو کي وپلورل د نورو ځیزونو تر څنګ زموږ د لرغونتون اړوند د پاك او سپیځلي قران هغه نسخه چي ویل کیده د طلا په اوبو لیکل سو ی وه او په نړۍ کي یې ساری نه و هم د غلو له لاسه د باجوړ په سیمه کي په اتیا زرو کالدارو وپلورل سو.

یوه افغان پخپلو سترګو لیدلي وه چي د پاکستان د کوچي بازار په سیمه کي ځلوردیرش لرغوني یونان چي بیه یې په میلیونو کالداری اټکل کیده د مغلو د مهال د ۱۶ تورو

سره چې ۲۳ میلونه ډالره بیه یې درلوده په یوه تر مځکه لاندې هټۍ (دوکان) کې ایښودل سوي وه.

د لرغونتون په څیزونو نه یوازې زموږ د هیواد د ګاونډیو بازارونو ډك سوه بلکې لیرې نړیواله بازارو ته یې هم لاره وکړه د لرغونتون د څیزونو د غلا او غلو په هکله هغه مهال او بیا را وروسته کې پلټنې او ګروېږنې وسوې یو بهرنی سړی چې په هغه مهال کې یې د لرغونتون د څیزونو د غلو په هکله لیکنې کولې ددې دپاره چې ده ته څه ستونزه نه وي جوړه سوې د هغو ډلو په هکله چې په دې لوټ او تالاز کې یې ونډه اخیستې وه د هغو نومونه یې په شفري ډول ثبت کړي وه او بیا یې د کمپیوټر حافظې ته سپارلي وه دا شفرونه په دې ډول دي.-HI.8, HI-9, SNP, HW-2, B-R 13,Am-2, GH 2, HI-7 او نور.

ځینې داسې ډنډوري لاهم پدې وروستیو کې وې چې له ملي لرغونتون څخه یو شمیر بارارزښته څیزونه د ډاکتر نجیب الله د واکمنۍ په وروستیو شپو ورځو کې د ساتنې **هیئت حکومت قبلي و هیئت ملل متحد جابه جا و مهر و لاک گردیده بود محفوظ است))**

لنډه دا چې هر چا پخپل وار سره زموږ ملي لرغونتون لوټ او زموږ هیواد یې له زیاتو نیتهلیکیزه او لرغونو څیزونو څخه بې برخې کړ. او د افغانستان د زرګونو کلونو د روښانه نیتهلیك (تاریخ) د روښانه او د په زړه پوري لرغونو څیزونو ګران بیه خزانه داسې لوټ کړه چې ددې میړني او تاریخي اولس د تیرې پیژندنې هر څه یې په څو پیسو د پردو پلاس ورکړه.

د ملي ویاړونو د خوندي خزانې ځای یې په یوې سوځلی او لوټ سوی کنډوالي واړاوه.

دپاره د **افغانستان** مرکزي بانك کښتني پوړ ته وړل سوي وه. دا چې دا څیزونه به اوس چیرې وي جوتتیا یې نسته دغه ډول د ملي لرغونتون یو شمیر څیزونه د یونسکو په مرسته د اطلاعاتو او کلتور وزارت ته هم لیږدیدلي وه.

څرنګه چې د افغانستان بانك د (نظارشورۍ) پلاس کې و نو که دا خبره رښتیا وي چې د نجیب الله د واکمنۍ په مهال کې دا څیزونه هلته وړل سوي وه نو هرو مرو به د نظار شورۍ د سریو پلاس ورغلي وي.

د **۱۳۷۵** کال په څو لمړیو میاشتو کې یو ځل بیا د لرغونتون د اثارو په تیره بیا د (طلاتپې) د څیزونو په هکله د هیواد دننه او بهر کې زیات شمیر لیکنې خپرې شوې پخوانۍ تنظیمي اداره او د نظار شورۍ هم د زیاتو پوښتنو سره مخامخ سوه بالاخره بولندوی (قومندان) احمد شاه مسعود اعتراف وکړ (( **اثار طلا تپه در جایي که به وسیله**

## د پورته لیکنې ا خځلیک:

۱-د اطلاعاتو او کلتور د وزارت اجراات
د ۱۳۵۲ د چنګابښ (۲۶)مه
د ۱۳۵۵ د سلواغې (۸) مه
د بیهقي کتاب خپرولو موسسه کابل
۲-اریانا دایره المعارف دریم ټوك
عمومي مطبعه کابل ۱۳۳۵ اسد
۳-افغانستان ته اووښتې فرهنګي زیانونه
پوهیالی محمد اسمعیل یون ۱۳۷۶ پېښور
۴-(اطلاعات) میاشتنۍ خپرونه
۹۶ ګڼه د سپتمبر میاشت ۱۹۹۶
(په پېښور کې د امریکا د کلتوري مرکز اخیستل (؟)

## تلوار!

**پلار د خپل زوی څخه پوښتنه وکړه:**
**ولې یو توکی په دوه کاله کې لولې؟**
**زوی ځواب ورکړ:**
**ځکه چه تلوار د شیطان کار دی.**

کندهار نه یوازي دا چې په پخوا وختونو کې میړنی، مبارز، مجاهد او عالم شخصیتونه روزلي ،بلکه په معاصر دوران کې یې هم داسې رانه ستوري پیژنو چې زموږ د ادب او فرهنګ، مبارزې او ازادي خواهي، علم او معرفت او لنده دا چې ټولو برخو کې د یادولو وړ دي، د بېلګې په توګه د احمدشاه بابا، میرویس نیکه، مولوی صاحب صالح محمد خان کندهاری او داسې نور درنو شخصیتونو ځخه یادونه کولای شو. همدارنګه داسې نامتو پوهان لکه بینوا صاحب چې نوم به یې تل ژوندی وي هم د یادولو وړ دي. په دوی کې زیاترو هغه اغرازي او اشعاري القاب ګټلي چې ډیرو لږو کسانو ته داسې القاب ورکولو شوي کله غازي، نیکه بابا، علامه او لوی استاد. افغانانو د خپل تاریخ په اوږدو کې د ګوتو په شمار کسانو ته داسې القاب ورکړي او بس. اروا ښاد عبدالحی حبیبي هغه عالم شخصیت و چې د ده افتخاري (علامه او لوی استاد) القاب یې ګټلي دي او نن ورځ زموږ علمي او فرهنګي موسسو کې په همدې اعزازي درنو نومونو پیژندل کیږي.

لوی استاد علامه عبدالحی حبیبي د عبدالحق کاکړ کندهاري زوی دی چې په ۱۳۲۸ سپوږمیز لیږدیز کال د ربیع الثاني په اولسمه د پنج شنبې په ورځ دکندهار ښار د بامیزو کوځه کې نړۍ ته راغلی. دده پلرونه او نیکونه نومیالي عالمان او د افغانستان متاخیر مشاهیر وو. دغه علمي

# اروا ښاد استاد عبدالحی حبیبي
# زموږ د معاصر دوران روڼ ستوری

پوهندوی محمد بشیر دودیال

## (د دغه مرحوم د څورلسم تلین د رارسیدو په مناسبت)

شخصیت د علامه حبیب الله اخندزاده درنې کورنۍ ته منسوب دی. جید عالم حبیب الله اخوندزاده د خپل وخت نامتو دیني عالم و چې په سیمه کې ټولو ورته درناوی درلود او لوی استاد عبدالحی حبیبي خپل تخلص هم د همدې نسبت له کبله (حبیبي) غوره کړی. ویل کیږي چې دغې له فضیلت نه ډکې کورنۍ له کندهار ځخه بهر هم شهرت درلود. ده لومړنۍ زده کړې تر پنځم ټولګي پورې سرته ورسولې او بیا په ۱۳۰۶ لمریز کال وروسته تر فراغت د ښوونکي په توګه وګومارل شو. لږ وخت وروسته یې په ادبي لیکنو او شعر ویلو پیل وکړ. د نوموړي هماغه لومړني اشعار دومره جذاب او ښکلي وو چې د خپل وخت د پښتو لیکنو غوره اثار ګڼل کېدل.دده ادبي استعداد چې په ۱۳۰۷ لمریز کال کې د هیواد د نامتو جریدې (طلوع افغان) چې هغه وخت کندهار کې خپریدله، مرستیال وټاکل شو لږ وخت وروسته په خپله د همدې جریدې مسئول چلوونکی شو. هغه ستر خدمات چې نوموړي استاد اسلامي او افغاني فرهنګ ته په همدې دوره وکړل او دا چې څومره یې طلوع افغان په علمي محتوا ښکلی او غني کړ، د نه هیریدو وړ دي. لوی استاد علامه عبدالحی حبیبي په ۱۳۲۰ لمریز کال کې د پښتو ټولنې لوی مدیر او د مطبوعاتو د مستقل ریاست مرستیال و، وروسته د پوهنې وزارت مشاور، د کندهار د پوهنې رئیس، د چمن سرحد کې افغاني وکیل التجاره، د ملي شورا اووهمه دوره کې د کندهار د خلکو اتخابي وکیل، بیا وروسته وریسې دکابل پوهنتون دادبیاتو او بشري علومو د پوهنځۍ رئیس او بیا د کابل علمي معتبري مجلې مدیر په توګه و ګمارل شو. د دغو ټولو دندو ترڅنګ دغه ښاغلي دوامداره علمي او تحقیقي کارونه سرته رسول، کوم ستر خدمت چې نوموړي خپل هیواد ته کړی هغه د پښتو شعر تقریباً یو نیم زر کلن مستند ادبي تاریخ را سپړل او د هغو په هکله علمي څېړنه وه. ده د سلیمان ماکو د تذکرې او پټې خزانې

په هکله ډیر ژور، نوي، عالمانه او مهم تتحقیقات ترسره کړل او د پښتو لرغوني شاعران او د پښتو ادب رڼاوي یې و کړ. د پښتو معاصرو محققینو او لیکوالانو کې د ادبي تاریخ د بنسټ د ایښودلو ویاړ د لومړي ځل لپاره د حبیبي صاحب په برخه شوي. د ده د غوره استعداد، اخلاص من خدمت، پوره زیار او هیواد سره مینه وه چې د وخت د پوهني وزیر د ده مهم کتاب خپور کړ او د دغه کتاب مادي او معنوي امتیاز د معارف په صلا حیت حبیبي صاحب ته تقدیم شو. د ده د ریاست په وخت کې پښتو ټولني مهم پښتو قاموس او د پښتو ګرامر تدوین او چاپ کړل. عبدالحی حبیبي یوه دوره د افغانستان د تاریخ لیکني د ټولني (انجمن تاریخ افغانستان) مشرتوب هم په غاړه درلود. استاد حبیبي په پښتو او دري سر بېره په عربي، اردو او انګریزي ژبو هم ښه پوهید او په لرغوني سنسکریت لیکلو کې یې هم تحقیق کړی.

له بده مرغه زموږ نوی کول که چیري حبیبي صاحب لږ قدري پیژني هم هغه صرف د یو ادیب په توګه پیژني، حال دا چې حبیبي صاحب ډیر یو ستر علمي، اجتماعي او سیاسي شخصیت تیر شوی. هغه کار چې علامه حبیبي د افغانستان د تاریخ په تیره بیا د معاصر تاریخ په هکله کړی ډیر درونډ او د ستاینې وړ دی. دغه راز کوم خدمات چې لوی استاد زموږ د معارف لپاره کړي په دا وروسته وخت کې ډیرو لږو کسانو هومره قدري خدمت کړی. حبیبي صاحب دخپل و کالت په دوره کې هغه یوه، مدبر او متین استازی و چې د شورا د وکیلانو پام یې ځان ته اړولی و او په هیوادنیو مسایلو کې یې رغنده نظرونه ورکړي. کوم تحقیقات چې حبیبي صاحب د پښتو ژبي لرغوني ادب په هکله کړي په انګریزي، جرمني او دري ژبو ترجمه شوي او د نړۍ نامتو کتابخانو کې ساتل شوي. د ارمان او افسوس خبره خو داده چې حبیبي صاحب د پښتو ادب او تاریخ لپاره ډیر ښکلی اساس او بنسټ کیښود خو وروسته تر هغه ډیر په سستۍ او ځنډ دغه ښکلی ماڼۍ جګه شوه او اوس هم د هغې سینګار ته لازیات ضرورت دی. زما هیله داده چې لوی استاد علامه حبیبي باید نه یوازي د یو ادیب په توګه بلکه د یو اجتماعي، علمي، سیاسي او تاریخ لیکونکي ستر شخثیت په توګه هم و پیژنو. نوموړی زموږ په نوي کولو ډیر زیات حق لري موږ ته لازمه ده د هغه په ښودل شوي لار قدم کیږدو او د هغه علمي کارونه تعقیب کړو. د هغه آثار تکثیر کړو او دهغه مفکوره ژوندی وساتو، خدای دي موږ په دې لار کې کامیاب کړي. علامه حبیبي د هیواد ځخه بهر زیاتو ملکونو ته سفرونه کړي او هلته یې هم د هیواد په ګټه ستر فعالیتونه سر ته رسولي. په بهرنیو هیوادو کې عالمان او محققین د حبیبي نامه ته ستر درناوی لري او هغه د افغانستان د یو ممتاز عالم په توګه پیژني. د دغه عالم لیکني له انګریزي، جرمني او روسي ژباړو پرته په هند او کراچي او ایران کې هم نشر شوي. ده اوږده موده د کراچي د (سردش) نومي خپروني او د ایران د مشهوري علمي ـ ادبي خپروني (یغما) سره قلمي همکاري لرله او په خپلو لیکنو یې هغو ته علمي وزن ښبلی و.

ارواښاد حبیبي له نن ځخه ځوارلس کاله یعني د ۱۳۶۳ لیږدیز لمریز کال د غویې د میاشتې په شلمه نیټه په کابل کې وفات شو او مقبره هم هلته ده الله (ج) دې د دغو سترو خدمتونو او علمي کوښښونو اجر عظیم ورته نصیب کړي او جنت فردوس دي ورته وریه برخه کړي.

امین!

## چه د بل په نامرادي کښي مراد غواړي دا سبب گڼه د خپلي نامرادي

عبدالحمید مومند




په ۱۹۲۹ ع کال کي د امریکا په علمي دایرو او مجلسو کي یوه داسي اوازه خپره سوه چه د خلکو پام خو لا څه چي مطبوعاتو هم په خپل لمن کي ځای ورکړی وو هغه دا چي:

یو دیرش کلن خوان چي "رابرټ اچنسون" نومیدی د شکاگو د پوهنتون په مشری (ریاست) وټاکل سو. د دغه پوهنتون په مشرتوب د "رابرت" د ټاکلو پر ضد ښونکي ودریدل او پر خلمي رئس یې کلکي نیوکي وکړي. هغو ښونکو "رابرت" یوازي د طفلانه افکارو حښتن نه بلی بلکي د هغه د اصل او نسب او سابقې په باره کي هم ویناوي کولې، ځکه "رابرت" تر دغه وخت لس کاله دمخه د "یـل" د پوهنتون مستخدم وو.

یو ورځ په هغه مجلس کي چي د شیکاگو د پوهنتون د نوی مشر "رابرت" په مناسبت جوړ سو، پلار یې هم گډون پکښي وکی. پـه دې مجلس کي د "رابرت" پلار ته یو دوست مخ ور وگرزوی او کرار یې ورته وویل: (( نن ستا پر زوی زیاترو ورخپانو نیوکي کړي او سپکي یې هم ورته ویلي دي...)).

د رابرت پلار په ډیره سره سینه داسي ورغبرگه کړه (( هـو! پر "رابرټ" سختي نیوکي سوي او ناروا نسبتونه یې هم ورته کړي دي، لیکن هغـه تول د یوې ایکی ارزښت نه لري، که سړی خیر سي هغـه تولي نیوکي د ده ډېوهي او لویي دلیل دی. ځکه یوڅوک چه هر څومره لوی او پوه سي په هم هغه انـدازه خلک ډیریږي چه پر هغه نیوکي وکي او په ناروا نسبتو یې یاد کي)).

وایي: د انگلستان یو پخوانی پاچا "اتم ادوارد دوک ویندسور" کله چه په ۱۴ کلنی کي نظامي ښوونځی ته ولاړی یو وخت د ښوونځی مشر د ژړا په حال کـي ولیـداو کله چي د ژړا علت ځني و پوښتی نو یوه شو چه د ادوارد درو تنو تولـگی والـو هـر یوه بې موجبه په لغتو وهلی دی.

د ښوونـځی مدیـر هغـه درې تنـه زده کونکي را و غوښتـه او د "ادوارد" د وهلـو علت یې ځني وپوښتی نـو ورتـه جوتـه سوه چه هغو درو تنو داسي سلا سره کړې وه

چه د انگلستان ولیعهد به په لغتـو وهـو، دا ځکه چه کله دی پا چا سي نـو دوی به په خپله دغه وینا کوي چي "موږ پاچا په لغتو وهلی دی" ښتین وي.

هو! ریښتیا همداسي ده چـه زیـاتره کسان بې له کومه ښکاره علت او سببه پر نـورو خلکو نیوکه (انتقاد) کوي، بد پر وایې او داسي فکر کوي چي په دې کار سره بـه موږ نومتوتی (مشهور) سو. خـو هغـه چـه نیوکه پر سوې وي موفق او کامیـاب دي ځکه چه هر یو ورته متوجه کیږي.

یوه ډله خلک بیـا لـه نیوکي کولـو او ښکنځلو کولو ځخه یو ډول خوند اخلي. دبیلگي (مثـال) پـه تـوگه یـوې مشـهوري ښځي د خیر په چارو د تولني یو مشر ته لیک واستوه او دی یـې تـورن کـړ وو چـه هغه اته میلیونه ډالر دی برمته کـړی دی

چه خلکو د بېوزلو او اړو کسانو د مرستي په خاطر درکړي وي.

په دې بې ځایه تور هر څوک ښه پوهیده چه دا بې ځایه دی او د ټولني پیسې په صحیح مصرف رسول کیږي.

څرنگه چه ددې لیک په لیکلو کې د دغې میرمني منظور دانـه وو چـه د پورتـه موضوع د حقیقت څرنگوالی معلوم کړی بلکه غوښتـل یـې چـي خپـل تیټ والی د هغې موسسي دمشر پـه ازارلـو او سپکتیا سره چـه گمـان یـې کـاوه د هغـه سـړي شخصیت د دي ښځې او یا د دې د مېړه تر شخصیت ډیر لـوړاو قـوي دی راضـي کاندي.

شوپنهاور په دې اړه وایي:
"لنډ فکره او ټیټ خلک پر لویو او ښو خلکو باندي د دروغو ویلـو، تـهمت تړلـو او بدنامولو له کبله په ځانو کي عجب خوند حسوي؟"

دغه ټیټ او ناوړ عادت په کومه ځانکړې ډله خلکو پـوري اړه نـه لـري څکـه هیڅوک به تصور هم و نه کړي چي د یو لوی پوهنتون مشر "یـېل" پـر پـوه او سـتر شخصیت لکه (توماس جفرسن) باندي چي په پاکی او ښه نامه باندي مشهور وو په تهمت ویلو او بدنامولو باندي یې زیات خوند اخیستی وایي.

کله چي "جفرسن" د امریکا د جمهوري ریاست داوطلب و ییل د پوهنتون مشـر دده په باره کي وویل: " که چیري دا سړی بریالی او زموږ د هیـواد جمـهور رئیـس سي موږ به دده د زمامداری په وخت کي په فسق او پساد اختـه او پـه ټول هیـواد کي به مو بې لاري او بې دیني حکمفرما سي"

همدارنگه چا تصور کولای سوای چي د "جارج واشنگتن" په باره کي دي وویـل سي، چي دی یو خطرناک، جنایت کار او سپک سـړی دی، څرنـگه چـي دده پـه باب د غرض د خاوندانو او جاسلانو د ډلي کار دی اندازې ته ورسیدی چـي یـوي ورځپاني د "جارج واشنگتن" کاریکاتور په داسي ډول چي نوموړی په مرگ محکـوم او د دار تناو یې په غاړه ور اچولی و کاږي او د هغه تر عکس لاندي ولیکي:

"د دغه سړي باید په دغسي سرنوشت اخته سـي" او هـم دریاسـالار (اېبري) د شمالي قطب یو کاشف وروسته له دې چي نړۍ یې په خپلو بریالیو مسافرتو سره په هیښتیا کي اچولې، د زیاتو پوهانو هیلي یې ترسره کړې او په خپله سختو مسافریو کي یې ډول ډول تکلیفونه او سختی گاللي، او ان چي نژدې وو چي له لوږې او یخ څخه مړ سي او هم یې د پـښو گوتـي لـه یخـه وچـي شوي. څو چـي روغندویـان (داکتران) دې ته مجبور سول چي د پـښو گوتي یې ور پرې کړې.

دغه رنگه نژدې وو چي د دغه سفر د تکلیفو او زحمتو له لاسه یې ماغزه خراب سي. خو اخر په بریالیتوب سـره لـه دې ټولو خبرو او خواریو لنډو فکرو او حسد کونکو امرنو نومـوړی پـه دې متـهم کـي، چـي هغــه ســامانونه چــي د اکتشــاني چـارو د پـاره اختصـاص سـوې دي. بې له کوم حسـاب او کتابـه یـي د ځان او ملگرو په درد وهلي دي.

څو چـي د داسـي بـې ځایـو حملـو او د غرضونـــو ډکـــو نیووکـــو او تـــهمتو پایلـــه دا ســـوه چـــي د (دریـــا ســـالار اېبـــري) یـــوه لویـــه ډلـــه ملـــگري چـــي د داســـي مســـافرت کولـــو دپـــاره یـــې پـــر ځان راټول او تشـــویق کـــړي وو ورڅخـــــه ولاړه او بیـــــا ده و کـــولای ســـوای چـــي خپلـــو گټورو علمـــــي مســـــافرتو ته دوام ورکړي.





حرنگه چي په افغانستان کي نقليه وسايط په نازل قيمت ترلاسه کيری نو له
همدي امله افغانستان د. موترونو د پلورلو يو لوی بازار گرحيدلی دی

